

### د مورچل تبصره

# اشغالګروته تېر (2013)ز خواشینونکی کالو!!

دې کې به کوم شک اوشبه نه وي، چې افغانستان کې تېر (۲۰۱۳)ز کال خارجي یرغلګروته خواشینونکی او له اندیښنو ډک کال و، دوئ پدې کال کې ډیر ی هغه ځاني او مالي زیانونه ولیدل، چې اټکل یې نه کاوه، تر نورو کلونو یې دخپلو پوځیانو ډیرې جنازې خپلو هیوادونو ته یوړې، او دوسلو ډک کانټینرونه یې یا داور دلمبو خوارک او یا غنیمت شول، چې نړدي هغه پیښه چې ددوئ تر سلګونوزیات پوځي شوبلې پکې ویجاړ او نړیوال شان او دبدبه یې پکې تر خاورو لاندې شوه، دننګرهار د تورخم ددروازې فدایي ګوزارونه وو، هغه چې دپوځي شوبلو داور لبمواو دبارودو زهرجنو لوخړو یې دواشنګټن کنګرې هم مسمومې کړي، همداسې په ۲۰۱۳ ز کال کې د هیواد په ټولو سیمو کې د اسلامي امارت پراخه عملیات او له همګټو دښمنانو څخه د ډېرو سیمو تصفیه، هغه څه دي، چې ددښمن تبلیغاتي ماشین یې نور د پټولو ځواک ونه شواي درلودلای او له مجبوریته به یې پرې کله نا کله راپورونه خپورول، د کابل وروستیو ګوزارونو، د هلمند، لوی ننګرهار، بدخشان، فاریاب او نورو پراخو سیمو جهادي بریدونو، چې په هره جګړه کې به په سلګونو ډله ایزو جهادي قوتونو پکې ګډون کاوه او دیر غلګروژامې به پکې ماتیدې، په سلو کې لس خبرونه یې ددښمن رسنیو خپاره کړل، سره له دې چې د خبر جزئیات به یې په بشپړ ډول له استخباراتي سانسور سره مخامخ وو، بیایې هم د بادار او مزدور د پلویانو دماغ خراب کړي وواوخپل امنیتي چارواکي به یې په بې کفایتۍ او نااهلۍ تورنول.

امریکایانو او لویدیځوالو دې ۲۰۱۳ز کال کې په نفسیاتي اوسیاسي لحاظ هم په ډیرومورچلونو کې دمجاهدینولخوا ماتې وخوړه، دپوځ محاربوي مورال یې لویدلی او دمجاهدینومفتوحه سیموته له ډیر عسکري ځواک پر ته دچاپو او پوځي مداخلو روحیه نلري.

همداسې یې په سیاسي ډګر کې دومره زیان لیدلی چې دادی ورځ تر بلې نړۍ کې له انزوا وتجرید سره مخامخ کیږي، همدا وروستۍ ورځي شمالي قطب، منځنۍ اومرکزي آسیا دروسیي چارواکیو دیولړ تحرکاتوشاهده ده، چې دنړیوالو رسنیو دراپورونو پر بنسټ غواړي چې نړۍ نوره له یو قطبه کیدوڅخه راوباسي، او بیا دزړې (وارسا) همفکرې هیوادونه په کوم بل نوم سره دامریکایي فعالیتونو پر ضدمنسجم کړي، دې وروستیو کې کابل ته دروسانو دولسي جرګې دمشر (سیر ګې نریشکین) وروستي سفر یولړ داسې نړیوالې اندیښنې راپارولې چې ګوندې روسان بیا دامریکا په وړاندې کابل کې د (کابلوف) لپاره خوبونه وینې،

همداسې په شمالي اروپا کې دبلاستیک توغندیو نصبول او سوریه کې دامریکادپوځي اقدام کلک مخنیوی څه داسې اشارې دي ،چې دامریکاپه سیاسي ماتې او په وړاندې دمنحل شویوهیوادونو شیرازه بیا انسجام او تنظیمیدونکې ده او ددوئ دسیاسي شکست نښې په ډیریدودي .

پدې توګه تېر ۲۰۱۳ز کال کې نیواکګرپه اجتماعي او ولسي جهت کې هم له ر کودسره مخامخ شوي ،چې ددوئ دتصامیموبرعکس یې خپل ولسونه هم نور نه غواړي چې عسکر دې په افغانستان کې نوره جګړه وکړي او مزید تلفات دې ویني، لکه همدې وروستیو کې د (سي این این) تلویزیون او (او آر سي) له لوري چې په یوه تازه نظرپوښتنه کې ویل شوي، چې ۸۲ فیصده امریکایانو په افغانستان کې د متحدو ایالتونو له پوځي ماموریت سره مخالفت کړی ،چې دا د پنځه کاله پخوا په پر تله په سلو کې ۴۶ زیاتوالی دی.

سي این این وایي، د نظرپوښتنې پایلې ښیي ،چې په افغانستان کې د امریکا دوولس کلن پوځي ماموریت د امریکا د متحدو ایالتونو تر ټولو نامحبوب پوځي عملیات دي ،او اکثره امریکایان د دې غوښتونکي دي، چې امریکایي پوځیان دې، د ۲۰۱۴ کال تر دسمبر څخه مخکې له افغانستانه وایستل شي. که چیر ته یې دپخواغوندې دخپلوعسکرو بریالیتوب شونی اټکولای، نو بیابه یې خپل امریکایي ولس د تیر په شان دعسکرو پایښت غوښتی وی .

دبریتانیا لوی درستیز (جنرال سر پیټر)هم دطالبانو قوت باندې څرګند اعتراف کړی او جنرال پیټر له ټیلګراف ورځپاڼې سره په مر که کې وویل: « طالبان به هڅه وکړي، هغه سیمې بېر ته ونیسي چې موږ ور څخه وتلي یو، او د موسي کلا په شان ځیني سیمې، چې موږ د هغې د تصفیه کولو لپاره جګړه وکړه او تلفات مو ور کړل، د دوی (طالبانو) لپاره سمبولیک اهمیت لري.»

ده په عین حال کې وویل، دا به ډېره بده خبره وي چې طالبان دا ډول سیمې بېر ته لاندې کړي..........

داسلامي امارت دمجاهدینوپه پوځي ځواک ددښمن دپوځي او سیاسي مشرانو اعترافات اوڅرګندونې ،هغه کوټلې شهادتونه دي ،چې په ډاګه ددې جوت ثبوت وړاندې کوي ،چې تېر (۲۰۱۳ز) کال داشغالګرودماتې او دمجاهدینودپوځي ،سیاسي او روحیاتي فتحې کال و، مجاهدینو تېر کال وکولای شول چې نیواکګر له فرعوني برمه راوپرزوي او دسرپه کاسه کې اوبه ور کړي !

تېر (۲۰۱۳)ز کال کې داسلامي امارت دمجاهدینو جهادي پرمختیا او داسلام ددښمنانوسر کوزې کیدل ،مونږته ددې الهام راکوي ،چې ووایو چې انشاءالله تعالی راتلونکی (۲۰۱۴)ز کال به هم داشغالګرو دپاتې شویوعسکروپه بار کونو او پوځي قشلو دمجاهدینو تندریز بریدونه لاپسې تشدید شي ، دلوی خدای ﷻ په مرسته به امریکایان او ائتلافیون یې دشورویانوپه بد نام برخلیک اخته او له رسوایي سره به مخامخ شي

(شکورشفق)

# سال ۲۰۱۴م سال خطرناکی به امریکا وشرکای جرمی اش خواهد بود

الیاس " عاصم "

حملات اخیر در آغاز ماه جنوری سال ۲۰۱۴م بالای مراکز مهم امریکایها در غنی خیل ولایت ننگرهار و شب گذشته انفجار قوي در مرکز بسیار مهم امریکایها بنام (ایگر) در منطقه (گرین لاین) شهر کابل که چندان فاصلهء از ارگ نه داشت و جای بسیار پرامن به سفارت خانه ها و مراکز خاص نیروهای اشغالگر در کابل دانسته میشد، همچنان حمله موشکی چند روز قبل دقیقا بالای سفارت خانه امریکادر کابل پیامهای بسیار روشن را به آمریکایها داشت.

آغاز این سال چون از بهار اش پیدا است برای نیروهای اشغالگر در کشور اندوگین بود، که جان چندین عساکر امریکایی را گرفت ونیز از لحاظ معنوی ضربهء قوی را بر پیکر اشغالگران وارد کرد.

سال ۲۰۱۴م سال نکبت و شرمساری بی نذیر در تاریخ امریکا به آن کشور خواهدبود، این شرمساری زمان قابل درک است که دستگاه شکست خورده سیاسی ونظامی امریکا حاضر به درک آن شود، اگر امریکایها خود را فریب دهند وفکر کنند که ملت های جهان هم شکست فجیع ایالات متحده و همبستگان اش را نه خواهد دانستند، پس به حماقت سیاسی امریکا و شرکای جرمی اش دلالت فزایندهء خواهد نمود.

وزارت دفاع امریکا در جریان سال ۲۰۱۴ م عساکر خود را بدون اینکه درک کند چه دست آورد در جریان تجاوز دوازده ساله اش دارد از افغانستان خواهد کشید، معلوم است که عساکر امریکای نیز احساس دارند فکر خواهد کردند که مشقاتی را که در جنگ پرعبرت افغانستان تحمل کردند، نتیجه آن به امریکایها چه است؟ در صورت عدم دریافت پاسخ واضح که واقعا وجود نه دارد، نفرین بر سیاست گذران امور سیاسی امریکا خواهد فرستند و انزجار شان را از تمام دستگاه ناسنجیده جنگ طلب و زور گوی قصر سفید اظهار خواهد نمودند.

نیز ملت امریکا که توسط پرداخت تکس خود حمل کننده واقعی مصارف جنگ امریکا در افغانستان وعراق بودند، خواهد دانستند که سیاسیون ناسنج و متکبر ایشان برای آنها چه نتایج را از این دو جنگ که به بهانه های شوم استخباراتی آغاز شده بود به نفع امریکا به دست آوردند؟

در صورت عدم فراهم آوری قناعت ملت امریکا که به گونه راستین هرگز فراهم نه خواهد شد، ملت آمریکا مجبور به اتخاذ اصلاحات جدی در بخشهای دستگاهای مهم خصوصا دستگاه استخباراتی و امنیتی آن کشور و در بخش پالیسی خارجی که از جهان پولیسی میکند خواهد شد.

بهانه جنگ در عراق داشتند اسلحه کیمیاوی بود که هنوز هم پاسخ مثبت ندارد، و نیز بهانه جنگ در افغانستان به اصطلاح جنگ علیه تروریزم (جهاد بین المللی)بود، که هنوز فراگیر شد، مجاهدین در تمام نقاط مهم دنیا گسترش یافتند، نسل جوان حتی در اروپا و امریکا نظریه قوی جهادی یافتند که اکنون شرکت در جهاد سوریه ، تنظیم شدن در صفوف تنظیم جهادی وجهانی القاعده ، آغاز جهاد در سومالیا، مالی، یمن، سودان، عراق، سوریه ،ومناطق دیگر افریقا و آسیا، خود دلالت بر آن دارد که امریکا دیگر نه خواهد توانست منافع نامشروع را از کشورهای اسلامی هضم نماید، ملتها بیدار شدند، حاکمیت های مزدور که به زور و نیرنگ بر ملتهای مسلمان پالیسی غرب را تحمیل نموده اند، دیگر شناسای شده اند و یک حرکت بین الاسلامی در جهان اسلام در حالت خیزش است.

سیاست های ناسنجیده امریکا و غرب نه تنها حلقه زندگی را بر حکومتها و منافع خودضیق نمود بلکی آن رژیم های بیگانه پرست در جهان اسلام را که حراست از منافع غرب می نمودند نیز به مخاطره جدی مواجه کرد.

حالت جاری در جهان که به سبب سیاستهای ناسالم و جنگ طلبانه امریکا روی کار آمده باعث بیداری مسلمانان جهان و هشدار برای غربی ها در رأس امریکا است.

در سال ۲۰۱۴ م ما امیدوار هستیم که شکست و افتضاح امریکا در افغانستان به معنی شکست جهانی ابرقدرت امریکا خواهد بود و ملت های زیادی مظلوم و بیچاره را از چنگال مستقیم و غیر مستیقم اشغالگران معاصر رهای خواهد بخشید، ان شاءالله .

دسيمې دچاروتحليلګراوداسلامي امارت ويندوی قاري يوسف احمدي دمورچل دکالګڼې سره په مرکه کې :

# دمورچل مجلې رغنده اوپیاوړی روان بهیر دجهاد، سربښندنو، او مجاهدینو دفداکاریو یو ژوندی انځور بللای شو، او دروان جهادي بهیر، علمي او ژورنالیستک اړخونه یې فعال اوژوندی ساتلی

**مورچل :** څنګه چې تاسو دمورچل دجهادي، سياسي او علمي مجلې له هميشنيو کتونکيو څخه ياست، مضامين، خبرونه او انګيزه يې تاسو ته ښه معلومه ده، که پدې باب خپله ارزونه اوآند راته ووایاست؟

جواب : زما په فکر دمورچل مجلې جهادي، سياسي او علمي ليکنې واقعا ډيرې جالبې، په زړه پورې او قناعت بخښونکې دي، لکه څرنګه، چې ديوې مجلې لپاره پکار وي، هماغسې يې ارزښتناکه مضامين په خپله غيږه کې را نغښتي دي.

**مورچل :** دلومړي ګام په توګه مود مورچل مياشتينۍ دکالګڼې تابيا کړې، اوديوه نوښت په آند مود مورچل مجلې په هکله دهيواد دجهادي مقاومت دليکوالانو او شاعرانو آندونه او تاثرات پکې رانغښتې دي، که په خپله ژورنالستيکه ژبه راته ددې نوې فرهنګي ګام ارزښت، دکالګڼې مطبوعاتي، کلتوري، ټولنيزاهميت، دکالګڼو دماضي هينداره، شاليداوهم ددې کالګڼې فني جهت په ګوته کړئ؟

ځواب: دا ښه ابتکار او نوښت دی او داهغه څه دي چې ديوې ګڼې يا مجلې اهميت او باور(اعتبار )نور هم اضافه کوي، معمولا دمجلو کالګڼې چاپول، دمجلوهغه فرهنګي دود دی، چې له ډيره وخته يې رواج موندلی اودهرې فعالې مجلې فعال اوتکړه چلونکي کالګڼې ديوه نوښت په بڼه چاپوي، کالګڼه لکه چې له نامه يې ښکاري، دتېر کال ګڼو ته پدې ورستۍ شماره چاپ ښکلا او ځلا وربخښي اوډيری داسې مط

.الب پکې خپريږي، چې دتېر کال جايزه پکې اخستل شوي وي، تاسو دمورچل مجلې په باب د ليکوالانو دارزونو او تاثراتو خبره وکړه، رښتيا هم چې دمورچل مجلې چلونکيو پدې کار سره ابتکار وکړ او دجهادي مقاومت دداسې مجاهدو ليکوالانو ارزونې به يې دخپلې مجلې په لا ښېرازۍ کې يو بل مثبت ګام وي، هره مجله بايد داسې ګامونه واخلي او دخپلې خپرونې په

هکله باید ځانته دفني سرلاریو نظریات او آندونه معلومات کړي ،ترڅو دې تاثراتو ته په کتو خپله نوې فرهنګي تګلاره جوړه او خپرنیزه لارنقشه ځانته جوړه کړي ،نو په ټولیز ډول ویلای شو ،چې د مورچل کالګنه چاپول یو غوره فرهنګي ګام او د مورچل پرستیژبه پ ېې نور هم پورته لاړي.

**مورچل** : په فني لحاظ د مورچل دې کالګنې ته له کومه عینکو ګورئ؟

ځواب: داګنه به د خپلو نورو هغویو روښانه هېنداره وي ،او دا به دیوه مختصر کلیکسون او په اړوند موضوعاتو کې دیوه موثق مأخذ حیثیت ولري.

**مورچل** : دیوه لیکوال او شاعرپه توګه د مورچل مجلې علمي ،ادبي او ژورنالستیکه منځپانګه څنګه ارزیابي کوئ؟

ځواب: منځپانګه یې له علمي ،معلوماتي ،سیاسي ،دیني اوژورنالستیکه حیثه ډیره غني ،هر اړخیزه ، له باوري لیکنو برخمنه ده، او دلیکنو په هره برخه کې سړی وربانديي اعتماد کولای شي.

**مورچل** : د اسلامي امارت دیوه وتلې ویندوی په صفت، د مورچل ژورنالیستیک او جهادي بهیردروان سپیڅلې جهاددلا پیاوړتیا په لاره کې څومره اغیزمن او خپله مطبوعاتي سینه کې یې د مجاهدینو ساتل شوې خبرونه د جهاد د فرهنګي میراث په توګه څومره مهم بولئ ؟

ځواب: د نومورې مجلې روان رغنده او پیاوړی روان بهیر د جهاد ،سربښندنو، او د مجاهدینو د فداکاریو یو ژوندی انځور بللای شو، او د روان جهادي بهیر هغه ژورنالیستک اړخ یې دومره فعال او ژوندی ساتلی دی لکه چې د دې مجلې هر لیکوال چې په عین واقعیتونو کې د سنګر د مجاهد تر څنګ هر وخت او هره شیبه ولاړ وي او هغه څه چې یې نشر ته سپارلې، واقعا ریښتوني، بې له کوم زیادت او کمبود نه پر حقایقو ولاړ خبرونه وي، زه باور لرم ،چې دا او د دې تر څنګ نور مضامین هر کتونکی دیوه مأخذ په توګه کارولای شي .

**مورچل** : دلویدیځ د ښکیلاکي ایتلاف په مقابل کې د جهادي مطبوعاتو رول رغنده بولئ که نه ؟که بولئ څو بیلګې یې لوستوالوالو ته وابنایاست؟




او
هـر
کـه
کال
وه
دا
ښـه

ځواب: بلې هو زموږ دجهادي مطبوعاتو رول ډېر رغنده ،بېړنی پـر حقـایقو ولاړ وي، چې ماتـه یې خبر او لیکنه په زړه پوري وي ، خو یې بیا هم درته یاده کړم ،نود شپږم ځلو رمـه ګڼـه پرلپسـې ۴۴ګڼـه کـې دابـو عابـد لیـــکنه وه ( پـر ارګ داباما چاپـه )چې د۲۰۱۲کـال دمـئ دمیاشـــتې دوهمـــه شـــپه وه ، دا لیکنه مې خوښـه شوه ،چې پـه یوه داسې انداز او سبک لیکل شـوي ،چې له یوې خوا پـه خپل ذات کې یـو موثـق را پـورو ، او لــه بلـې خواپکې دا خلي او خارجي دښمن ټکول شـوی و او هغـه حقـایق چې دوئ یـې دپټولـو کوښـښ کـاوه، دلته ډېر ښـه بر بنډ شوي وو او یا هم داووم کال لسمه ګڼه پرلپسې ۶۲ګڼه کې سرمقاله وه چې عنوان یې وو (برغلګر دجهادي عزم په څپو کې ) او داسې نور..........

**مورچل** : دمورچل داکالګڼه چې دتېرخپرنیز۲۰۱۳ز دپای او نوې ۲۰۱۴زکـال لپـاره دفرهنګي تکل ممثله ده، آیاتېرکال یا ترهغې مخکې مو ددې مجلې ځینې لیکنو دذوق تنده ماته کړې کـه نه ؟بیلګې یې په ګوته کړئ !

ځـواب:هومخکې مـو چې وویـل مورچل یولـه هغـو مجلوڅخـه ده چې لیکنـې یې پـه زړه پـورې او زړه راکښـونکې دي ،لـه مخکې څخـه ورتـه دهـر چاتـه تلوسـه وي ،چې ژرېې پیـدا او مطالعه کړي او خپله تنده پـرې ماتـه کړي وي ،دې مجلـه کې دجهـادي مقاومت لـه نغرې څخـه دراپورته شویو فرهنګي سپرغیو پنځونې او تخلیقات ستون لري اومېنـه و ال یې پـه ډېره مېنـه لولي.

**مورچل**: مورچـل مجلـه چـې سـتاغوندې قلموالواوفرهنګیـانو قلمي سـنګردی او پـه مختلفونومونومو لیکنې ،تبصرې او دکوه قاف دقافلو تخیلي پنځونې پکې خپرې شوي، څه مناسبې مشورې هم ورته لرئ ؟

ځواب: مشوره مې دا ده ،که یې ډېزان لکه چې دی، نور هم جالب شي او انځوریز البم کې که ممکن وي ،له هر انځور سره نوم ولیکل شي، ، دمور چل لفظ یې په سمه پښتو (نسخ) لیکنه ولیکل شي ، او چې کله له چاپ نه را ووځي ،نو که یې دچاپ نیټه ولیکل شي ، بل دا چې که دتاریخي مقاماتو انځورونه ورکړل شي ، او یا هم دتاریخي اشخاصو سوانح سلسله وار نشریدل پیل شي ، چې ملت وپو هیږي ،چې داکاسان چې موږ ورته داتلانو قهرمانانو نیکونو او باباګانو القاب ورکړي، هغوئ څه کړي ،چې موږ ورته په دې درناوي قائل یو.

**مورچل**: دیـوه مسـلکي ویانـد اوژمن فرهنګیـال پـه توګـه افغـان ولـس ،داسـلامي امـارت مجاهدینو او دمورچل مینه والو ته څه پیغام لرئ؟ مننه

ځواب: دمور چل مجلې کتونکو ته مې دا مشوره ده ،چې تاسو نوموړې مجله په غورسره ولـولئ چـې دا کـار بـه تاسـو دجهـاد ، سیاسـت ، علـم ،تجربـې،او لیکـوالۍ پـه اړه پـه نومـوړو ډګرونو کې پیاوړې او باخبره وساتي، او دګران هیواد افغانستان غیر تي او مجاهد اولس تـه مې دا پیغام دی چې دخپلو نیکونو او غیرتـي اسلافو پـه څیـر نور هم دپردیو پـه خلاف خپلـه مبارزه پر مخ یو سئ ! هغه بهرنی او کورنی دښمن چې تا سو آرام ته نـه پریـږدي ، کوښـښ وکـړئ چې دوئ درڅخـه آرام ونکـړي، پـه دې لاره کـې دشـهادت ،اسارت او جراحت پـر وا مـه سـاتئ ،ځکه دا هغه ابعاد دي ،چې هر مبارز ته مورال او متانت ور بخښي

او داسلامي امـارت مجاهدینو تـه مـې دا پیغـام دی، چـې دښـمن تـه خپـل جهـادي هـوډ ، متینه اراده، نه ماتیـدونکی عـزم وښایاست ،چې نتیجـه بـه یـې ددښـمن مـاتې او ستاسـو بریـا وي، له هغه اولس سره چې تاسو یې دځان مـال او عـزت دسـاتنې لپـاره خپلـه وینـه نذرانـه کـړې ،نور هم غاړه غړې شئ ،چې پـه داسې څه کولو بـه مـو ددښـمن دا بې ځایـه او زهـر جـن تبلیـات خنثی کړي وي ، له دوست سره دوستي او له دښمن سره دښـمني ،مـو یـوازې او یـوازې دخدایـد ﷻ لپاره وکړئ !

# پـه تیر 2013 کال کې د مجاهدینو اهمیت لرونکې بریاوې

شاهد غزنیوال :......................

دادی په افغانستان باندې داشغالگرو امریکایانو دوحشیانه یرغل یوبل کال هم تیر شو .

دغـه کـال او پـه هغـه کـې د مجاهـدینو پـوځي لاسـته راوړنـو لـه پـوځي او سیاسـي لحاظه ځانگړی اهمیت درلود .

په تیرکال کې مجاهدینو د خپلو پوځي عملیاتو لپاره تیمنا د خالد بن ولید نوم غوره کړ چې په ترڅ کې دښمن ته دسر اومال درانه زیانونه ورو واړول.

تیـر ۲۰۱۳ کـال لـه زمـاني لحاظـه د مجاهـدینو او یرغلگـرو امریکایـانو تـرمنځ دمقـابلې برخلیک ټاکونکی کال وه.

په دې کال کې هر لوري کوښښ کاوه چې په افغانسـتان کې د پوځې بریاوو تله دځان پـه لوري درنه کړي.

مجاهدینو د الله په نصرت وکړای شول چې د کابل په شمول د هیواد پـه ټولـو ولایتونـوکې د دښـمن پـه خلاف د مقاومت مورچلونـه تـاوده وسـاتي او دښـمن پـه خپلو تکتیکي نفوذي او استشهادي عملیاتو سر بدالـه کړي.

د تیر کال په جریان کې دهیواد په پلازمینه کابل کې د امریکایي استخباراتو په دفتـر ، پـه هلمند ولایت کې د ایتلافي ځواکونو په مرکزي قرارگاه ، په هرات کې د امریکې پـه کونسـلگري

، په غزني ولایت کې د پی ارتي په مرکز او په کابل کې د امریکا په سفارت او بهرنیو ځواکونو وروستی برید پر بهرني یرغلګرو د مجاهدینو تر ټولو مو ثر او تکتیکي بریدونه وو.

په تیر کال کې مجاهدینو وکړای شول چې د مجموعي تخمین له مخې ( ۱٤۳۱۵ ) شاوخوا پوځي عملیاتو په تر سره کولو سره چې د دښمن په سیارو ، ثابتو ، هوایي او ځمکنیو اهدافو ترسره شوي په ټولیزه توګه د دښمن ( ۶۰۵٤ ) عرد ادې نقلیه وسائط ، ( ۶۰ ) الوتکې او ( ) بابه پوځي تأسیسات په کلي توګه تخریب شوي.



په ټولو دغو تخریب شویو اهدافو کې دهغو د قیقو احصائیو له مخې چې مجاهدینو اخیستې او یا خپله وربانـدې دښمن اعتراف کړي ( ۲۷۵۲ ) بهرني یرغلګرو وژل شوي او ترهغه ډیر زیات شوبل شوي او ( ۲۲۲۰۰ ) داخلي مزدوران له منځه وړل شوي.

په پوځي برخه کې دمجاهدینو د غو حیرانوونکو بریاوو دهغوئ پر سیاسي موقف هم ښه تاثیر لرلی او په نړیواله کچه یې ورته د نړیوالو توجه راګرځولې.

د تیر کال په اوړي ۲۰۱۳/۶/۱۹ کې په قطر کې د اسلامي امارت د سیاسي دفتر افتتاح او دهغه پرسر د توحید د کلیمې شانداره بیرغ رپیدل د مجاهدینو د پوځي بریاوو ښکاره اثبات دی چې د کورنیو او بهرنیو دښمنانو د سختې وار خطایي لامل وګرځیده او ټولو په یوه اتفاق د دغه بیرغ په بیرته راکوزولو اقدام وکړ.

تیر ۲۰۱۳ کال دا په اثبات ورسوله چې په افغانستان کې د ابتکار او اقدام صلاحیت بیا هم له مجاهدینو سره وه ، او هغوئ چې هرځای او هروخت غوښتل هلته یې په دښمن مرګوني بریدونه تر سره کړل ، مرګوني تلفات یې ور واړول او په سلګونو کسان یې ترې مړه او ژوبل کړ.

تیر کال مجاهدینو د خپلو پوځي عملیاتو په ترځ کې د هیواد په ډیرو ولایتونو کې ډیرې مهمې سیمې لاندې کړې چې دې کار نورهم د دښمن په لویدلي مورال منفي تاثیر وکړ او له ډیرو سیمو څخه یې فرارته په قرار ترجیح ورکړه.

د مجاهدینو د تیرکال بریالیتوب له افغانستان څخه د بهرنیو یرغلګرو د تیښتې پروسه ډیره ګړندۍ کړه چې له امله یې ډیرو هغو تر ټاکلي وخت له مخه ټول ځواکونه له افغانستان څخه وایستل.

په افغانستان کې د بهرنیانو نوي ۲۰۱۴ کال په داسې مهال کې پیلیږي چې دوئ د مجاهدینو تیرو بریالیو عملیاتو ښه بې سیکه کړي ، معنویات یې ورځپلي او دوئ یې وار ترله مخې له ذهني شکست سره مخ کړي دي.

که د خدای رضاوه چې نوی کال به یې هم په همداسې هزیمت او شکست کې تیریږي چې د مجاهدینو د عملیاتو په مقابل کې به یې د مقاومت توان له لاسه ورکړی وي.

د تیر کال د مجاهدینو ، پوځي او سیاسي بریاوې د هغوئ د جهادي فداکارۍ ، سرښندنو او اخلاص محصول وې.

که نورهم مجاهدین د اسلام او اسلامي افغانستان له مقدس حریم څخه د دفاع په سنګر کې د الله د رضا لپاره خپل جهاد ته ادامه ورکړي حتما به له ټول هیواد څخه د بهرني اشغال د پایته رسیدو لامل ګرځي او مسلمان افغانان به د استقلال او خپلواکي په فضاکې د شرعي نظام تر سیوري لاندې دیوه خوشاله او نیکمرغه ژوند خاوندان ګرځي.

ان شاء الله.

...وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ الْمُؤْمِنُونَ(۴) بِنَصْرِ اللَّهِ يَنصُرُ مَنْ يَشَاءُ وَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ(۵) الروم

# ننگین تر از گندمک..!!!

حنظله "بدر"

تجاوز نیروها اشغالگر انگلیسی به خاک افغانستان در جنگ دوم افغان و انگلیس در حالی آغاز گردید که کشور انگلیس در طول نیم قرن قبل از شروع جنگ، در نیم قاره هند نفوذ کرده بود. و در تلاش و تکاپو بود که با حمایت برخی از سران قبایل تضاد و نزاع بین اقوام و قبایل با هم برادر را در افغانستان دامن بزند. در این زمان توانسته بود شاهراه های اتصال افغانستان به دریای آزاد دنیا و ارتباط افغانستان با کشورهای دیگر را تحت تصرف بگیرد .افغانستان را در خشکی محصور کند، تجارت باکشورهای ماورای بحر را به اختلال بکشاند. و تلاش کرد تا سیاست داخلی و خارجی افغانستان را در کنترل خود بگیرد. حمایت از شاهزادگان عیاش و تن پرور وفراری از ملت را برای از بین بردن اتحاد و همبستگی مردم افغانستان در عمل اجرا کرد. جنگهای خانمان سوز شاه شجاع و شاه محمود که در نتیجه ی آن بخش عظیمی از مردم افغانستان به خاک و خون کشیده شده در این راستا بود.

انگلیسها حملات گسترده ای را در (۱۰/۲۱/۱۸۷۸) از سه جهت قندهار، خیبر، و کرم به خاک افغاستان آغاز کردند. عساکر انگلیس تمام راهها را به روی خود باز یافتند و از جهت های تعیین شده وارد افغانستان گردیده و به طرف کابل مارش کردند. انگلیسها بر اساس یک پلان از قبل آماده شده محمد یعقوب خان که هشت سال در زندان پدرش بود و در اثر آن کنترول بر اعصاب خویش را از دست داده بود و به بیماری عصبی و روحی مبتلا گردیده بود و بالاخره به موجودی تدیل شده بود که از هر چیز میترسید و قوه اراده و تشبث و مقاومت خویش را غایب نموده بود، او را به امیری مردم افغانستان بر گزیدند. محمد یعقوب خان نه تنها به مقابله با عساکر متجاوز انگلیسی بر نیامد بلکه آنها را استقبال کرد، و بتاریخ (۸/۵/۱۸۷۹) یعقوب خان به اردوگاه (سر ساموئل براون) در (گند مک) حضور یافت، و در بیست و ششم همان ماه معاهدهٔ ننگین گندمک

توسط یعقوب خان با قابلیت سیاسی و حرفه ای (لوئیس کیوناری) که بندهای این قرارداد تماماً توسط انگلیسیها ترتیب یافته بود، بدون کدام اعتراض در حالیکه تمام بندهای این معاهده به ضرر افغانستان بود به امضای رسید. و نام یعقوب خان در تاریخ زرین کشور ما برای همیشه به لکه ننگ و سیاهی ثبت شد که هر کی به نام او بر میخورند به او نفرین میفرستند.

بگو مگو های پیمان با امریکا بسیاری ها را وا داشته تا همه آن پیمانهای که در تاریخ کشور ما به پیمانهای ننگین معروف هستند مورد باز بینی و مطالعه قرار دهند. من همچنان خواستم از این قافله به دور نمانم و پیمان با امریکا را با پیمان گندمک که در تاریخ کشور ما یکی از خبیث ترین و ننگین ترین پیمان بشمار میرود مورد مطالعه قرار داده و ابعاد خیانت و خباثتیکه در این دو پیمان با هم مشترک اند و وزنه خیانت در پیمان گندمک را با وزنه خیانت در پیمان با امریکا را مورد مقایسه قرار دهم:

پیمان گندمک درست مانند پیمان با امریکا توسط انگلیسها ترتیب شده بود. ولی با این تفاوت که امضا کننده پیمان کندمگ شخص مریض و بدون اینکه عواقب آنرا درک کند به امضا رسید. ولی امضا کننده پیمان با امریکا شخص صحت مند بوده و درست عواقب آنرا درک میکند ومیداند که برای ملت مسلمان افغانستان چه بلای را به ارمغان خواهد آورد.

در ماده(سوم) معاهده گندمک آماده (در صورت حمله بالای افغانستان امداد نظامی و اسلحه و پول انگلیسی بغرض دفاع در صور تیکه انگلیس مناسب داند، استعمال خواهد شد. سپاه انگلیسی بعد از انجام کار دفاع، از افغانستان به قلمرو انگلیس مراجعت خواهد نمود.) ولی در پیمان با امریکا در صورت تجاوز خارجی در فقره (۳-۴-۵-٦) ماده (ششم) هیچ تعهد وجود ندارد و فقط در صورت تجاوز خارجی به مشوره دادن اکفتا صورت گرفته. امریکایی ها مثل که با اطفال معامله نمایند از ابتدا تا انتهای این پیمان ننگین کلمات و جملات فریبنده و اغفال کننده را ترتیب داده اند تا در آینده نوکران حلقه به گوش شان درد سر برای شان نشوند.

در ماده (ششم) پیمان گندمک آمده است. (والا حضرت امیر صاحب افغانستان و ملحقات آن از طرف خود و جان نشینان خود متعهد میشود که برای رفت و آمد اتباع انگلیس در افغانستان مشکل تراشی ننمایند. تا محفوظ بوده و تجارت نمایند.) اما در پیمان با امریکا علاوه از این که برای اتباع امریکایی کسی مشکل ایجاد نکند، در صورت ایجاد مشکل شخص ایجاد کننده تروریست محسوب شده و عساکر امریکایی با استناد به قانون اوباما میتوانند شخص خاطی از قانون اوباما را به جزای اشد مرگ محکوم سازند. و اگر عساگر امریکایی

هر جرم و جنایتی را در افغانستان مرتکب میشوند نه بر اساس قوانین افغانستان بلکه بر اساس قوانین امریکا صرف جرایمی مورد باز پرس قرار میگیرد که در قوانین امریکا جرم محسوب شده باشد.

در ماده نهم پیمان گندمک حکومت انگلیس متعهد شده که (شهر های قندهار، جلال آباد و علاقه های که تحت اشغال قشون انگلیس بود تخلیه کرده و واپس میسپارد، ولی تنها کرم، پشین و سیبی که تحت اشغال قشون انگلیس است، تحت تسلط و انتظام انگلیس میباشد. اما این سلطه دایمی نبوده و مالیات آن بعد از وضع مصارف داخلی، سالانه به امیر افغانستان برداخته خواهد شد.) اما در پیمان با امریکا، در ضمیمه های (الف) و (ب) ماده (۲۶) تمام افغانستان در اختیار نیروهای اشغالگر امریکایی قرار دارند و بر اساس ضمیمه (الف) مناطق زیر در اختیار امریکایی ها میباشد:

کابل- بگرام- مزار شریف- هرات- قندهار- شوراب (هلمند)- گردیز- جلال آباد- شیندند.

علاوه بر این نیرو های اشغالگر بر طبق ضمیمه (ب) ماده (۲۶) ساحات و بنادر مهم تجارتی و هوایی کشور نیز در اختیار شان میباشد که این ساحات عبارت اند از:

| | |
|---|---|
| میدان هوایی بگرام | بنادر زمینی: |
| میدان هوایی بین المللی کابل | تورخم، ولایت ننگرهار |
| میدان هوایی قندهار | سپین بولدک، ولایت قندهار |
| میدان هوایی شیندند | تورغندی، ولایت هرات |
| میدان هوایی بین المللی هرات | حیرتان، ولایت بلخ |
| میدان هوایی مزار شریف | شیرخان بندر، ولایت کندز |
| شوراب (هلمند) | |

وهمچنان عساکر اشغالگر طبق فقره (۱-۲-۳) ماده هفدهم به کلی از پرداخت مالیه معاف میاشند:

۱- دریافت اموال و خدمات از سوی نیروهای ایالات متحده و یا به نمایندگی از این نیروها تابع مالیات یا محصولات مشابه و یا مرتبط دیگری که در قلمرو افغانستان قابل تطبیق است، نمی گردد.

۲- نیرو های ایالات متحده به شمول اعضای نظامی و بخش ملکی آن، مکلف به پرداخت هیچگونه مالیه و یا محصولات مشابه یا مرتبط دیگری که از جانب دولت افغانستان در قلمرو این کشور قابل تطبیق است، نمی باشند.

۳- قراردادی های ایالات متحده مکلف به پرداخت مالیه یا سایر محصولات مشابه و یا مرتبط دیگر از فعالیت ها و عواید ناشی از کار با نیروهای ایالات متحده یا به نمایندگی از این نیروها که طبق قرارداد اصلی و فرعی یا به حمایت این نیروها در قلمرو افغانستان انجام می شود، نیستند.

در پیمان گندمک در مورد برداخت کمک نقدی در ماده (دهم) چنین آمده: (حکومت انگلیس بغرض امداد به والا حضرت امیر - تا اختیارات حقه خود را حاصل نماید و هم در مقابل شرایط قبول شده این قرار داد تعهد میکند که سالانه ششصد هزار روپیه به امیر و جان نشینان او بپردازد.) اما در پیمان با امریکا هیچ گونه تعهد مبینی بر کدام کمک نقدی صورت نگرفته. ولی در صورت قبول تمامی شرایط و خواسته ها امریکا، امریکا به طور شفاعی وعده کمک چند ملیون دالری را نموده که این مقدار صرف در خدمت جواسیس و غلامان حلقه بگوش امریکا است که امنیت و پاسداری از تاسیسات عساکر اشغالگر امریکایی را در افغانستان به عده میگیرند. اما برای ملت مظلوم افغانستان چیزی جز بد بختی، فلاکت و ایثارت به ارمغان ندارد.

در پیمان با امریکا از ابتدا تا انتها هیچ جمله و یا کلمه وجود ندارد که به نفع مردم افغانستان باشد بلکه تمامی ماده ها و فقرات و ضمایم آن شرایط و قلدوری امریکا را تعریف نموده و برای فریب دادن اذهان عامه جملات و کلمات آن طوری سازماندهی شده که درک آن برای افراد عامه مشکل باشد.

ولی در تاریخ کشور ما همیشه وقتی حکام دست به خیانت زده اند و خادم بیگانگان شده اند، ملت بیگانه ستیز و مبارز دست به قیام و مبارزه زده است و با شمشیرهای شان داغ ننگ شاهان را زدوده اند. بنا موقف ملت مسلمان افغانستان در مورد این پیمان ننگین روشن و هویدا است. حضور یک فرد اشغالگر و اشغال یک بیلست خاک کشور به معنی ادامه جهاد تا نابودی کامل اشغال و اشغالگران در سرمین ملت مسلمان ما است. ملت مسلمان افغانستان بخاطر دفاع از دین، ناموس، عزت، وطن و اقامه نظام کامل اسلامی مبارزات جان آفرینی نموده و در این راه قربانی های بیشماری نصار نموده اند. بناً آنانیکه میخواهند با امضای این پیمان ننگین چراغ آزادی خواهی را در سرزمین مان خاموش سازند و سیطره کفر را بر ملت ما بقبولانند، کور خوانده اند و به خطا رفته اند. ملت ما بیش از هر زمانی دیگر بیدار تر و هشیار تر شده اند، خوب و بد خویش را بیش از هر زمانی خوبتر درک میکنند و دوست و دشمن خویش را بیش از هر زمانی بهتر میشناسند. ملت مسلمان افغانستان با تمام نیروی ایمان و عقل سلیم خویش به فکر مصالح دین و منافع ملی کشور خویش هستند و با جان و دل مخالف این پیمان که در واقع ننگین تر از پیمان گندمک است میباشند.

وقل جاء الحق و زهق الباطل ان الباطل کان زهوقا

خدا آن ملتی را سروری داد که تقدیرش به دست خویش بنوشت

با آن ملت سر و کاری ندارد که دهقانش برای دیگران کشت



# مورچل

# ارزونې

# اودلیکوالانوتاثرات !

## دمسؤل مدیریادښت :

دیوه فرهنګي نوښت په پارمو د وړم (۲۰۱۲)ز کال له پیله داسلامي امارت دفرهنګي کمیسون دکلنۍ غونډې دپریکړې له مخې دمورچل میاشتینۍ په کتابي بڼه خپریدل پیل کړل اودمتوازن او رنګینوجلدونوکې پسولل شوی مورچل دلوستونکیوپه خورا ګرم استقبال سره بدرګه شو، دفورم غونډې یې په علمي او ژونالستیکه یا خبري منځپانګه کې هم دپام وړنوښت رامنځته شو، نوې اوپه زړه پورې علمي، جهادي اوتاریخي مضامینولړۍ پکې دقلمي همکارانوپه مرسته پیل اوپه ځلورومخونو کې یې د(انځوریزمورچل ) ترسرلیک لاندې داسلام او خاورې ددښمنانود تلفاتواودمجاهد ولس دبریالیتوبونو جالب عکسونه په خپله سینه کې چاپ او دتاریخ حافظې ته یې وسپارل، چې دادی دیوه نوښتګر ګام په توګه موداځل دمورچل د(کالګنې)تابیا ونیوه ،اودلوی خدای ﷻ په مرسته اودخپلو هدفمنوقلمي همکارانوپه لاس نیوي مودادی وکړای شول، چې دجهادي ادب اوژورنالیزم دلاپیاوړ تیاپه خاطر دامبتکرانه کالګڼه چاپ وکړو!

نوومو پتییله چې دجهاد دقلمي او فرهنګي مورچل دتاندو اوبهاندومطبوعاتي سروالانو آندونه ، تاثرات او مشورې وپلټو اودمورچل د تېر خپرنیز بهیر په باب یې د شالید ارزونه ، پیغام بخښونکی لرلیداولید لوری ځانته معلوم کړو،ددوئ دې هم کورودان وي ،چې زمونږ غوښتنه یې په ورین تندې ومنله اوخپلې ارزونې او مشورې یې راولیږلې ، نور انتظارمو نه اوږدوو،ددوئ تاثرات او آندونه کېټ مټ تاسو ته دقضاوت په میز ږدو ، دا ناسو اودامو دلیکوالو تاثرات !!!

(شکور شفق)

دمورچل میاشتینۍ مسؤل چلونکی

ذبیح الله مجاهد تحلیلگر امور سیاسي وسخنگوی امارت اسلامي افغانستان :

# گذرِ کوتاهی بر جریان یک ساله مجلۀ مورچل

ماه نامه (مجله)مورچل که انعکاس دهنده پالیسي رسمی امارت اسلامی افغانستان است، روندهای روزمره سیاسی کشور و جهان را به لسان پشتو و دری زیر تحلیل و بررسی میگیرد.

سخن از شعر وادب را باخود دارد.

تصاویر را از تلفات دشمن و واقعیت های که نیروهای اشغالگر در کشور به آن مواجه اند به نمایش میگذارد.

خبرهای از رویدادهای نظامی سنگرهای گرم جهاد را از ولایات مختلف به دید خوانندها میرساند.

در اخیر جدول خُلصی از پیشرفت ها و زیانهای جریان جهاد را به تصویر میکشد.

این ماه نامه که سال هفتم خودرا تکمیل می نماید، قبلا به دیزاین جدا در خدمت خواننده گان قرار داشت ولی در جریان سال گذشته تغیرات لازم در دیزاین و محتوای آن به میان آمد.

در مرور یک سال (مجله مورچل) توسط سعی بې دریغ مدیر مسئول، هیئت تحریر، نویسندهای خبیر و در عموم دست اندر کاران اداره ماه نامه، پیشرفت های قابل ملاحظهء در آن دیده میشود:

ـ سرمقاله مجله که با در نظر داشت وضعیت سیاسی زمان، پالیسی امارت اسلامی افغانستان را در برابر قضایا، با بسیار مسئولیت و درایت به خوانندها ارائه میدارد قابل ستایش بوده و در جریان فعالیت خود واقعا ذهنیت ها را نسبت به پالیسی امارت اسلامی افغانستان در روشنی کامل قرار داده است.

ـ ضمن مقالات عدید به دولسان رسمی کشور (پشتو / دری) تحلیل و بررسی دقیق از وضعیت کشور، حالت جاری جهان اسلام، بخش های مختلف زندگی افغانها ودر عموم امت مسلمه، وضعیت جهادی کشور، یادهانی از دست آوردها و پیشرفت های مجاهدین در عرصه های مختلف نظامی، سیاسی واجتماعی و مقاله های علمی و

تحقیقی را به دست رس خوانندها مرساند که واقعا همه را در روشنی قرار داده، پرده را از واقعیت ها پرداشته ، ملت را در بیداری و تداوم مبارزه جهادی یاری کرده است.

ــ در بخش شعر و ادب، کلام زیبای را در ضمن اشعار حماسی که روح بخش است به علاقه مندان میرساند، جوانان را تحریض می نماید، جریانات مبارزه علیه اشغال را به گونه مختصر و پرمعنا به تصویر میکشد و درد ها و اهداف بزرگ ملت ما را به جهانیان هویدا میسازد.

ـ درحدود چهار صفحهء وسطی مجله، تصایر و عکاسی از حالت فلاکت بار اشغالگران در افغانستان را به نمایش میگذارد، وضعیت شکست و تلفات دشمن را به گونه زنده و مستند پخش می نماید که انکار از آن امکان نه دارد، در عین حال به اثبات میرساند که افغانهای کنونی نیز همانند نیاکان دلیر خود دشمن را به هلاکت و نکبت کامل مواجه ساخته و ابتکار عمل را از آنها به دست آورده اند. تلفات جانی ومالی که دشمن در این کشور رادمردان دیده و یا می بینند، باید در صفحات زرین تاریخ کشور ثبت گردد، تابه گونهء عبرت به استکبارچیان آینده و درس به نسل های بعدی در لابلای تاریخ افغانستان باقی بماند.

ـ ماهنامه وزین مورچل در طرف نیمه بعدی خود خبرهای جهادی را از کنج و کنار مختلف کشور به نشر می رساند، رویدادهای نظامی که به سبب جهاد ومقاومت مردم غیور افغانستان و مجاهدین سربه کف امارت اسلامی به وقوع می پیوندد، در مجله مذکور با تذکر نوعیت حمله بر دشمن، یادهانی از مکان دقیق واقعه ، نشاندهی دقیق از وقت حمله که در اثبات همه جزیات حادثه ممد است ، همچنان تلفات هنگفت جانی ومالی که دشمن می بیند ونیز اندازه قربانی که مجاهدین میدهند، این همه در بر گیرنده بخش خبری مجله مورچل است.

در نهایه تصویر کشی کوتاهی از حالت جهادی را در ضمن یک جدول، به دست نشر می سپارد که خوانندها را به گونه مختصر و آسان ، از وضعیت سنگرهای گرم جهادی ، تلفات دشمن، دست آوردهای نظامی و نیز اعطای قربانی های بی دریغ مجاهدین آگاه میسازد که در صفحات تاریخ کشور به ثبت خواهد رسید.

از بارگاه الهی خواهانیم که روند بعدی مجله وزین مورچل را هنوز هم پرمحتواتر و مقبولتر به ملت مظلوم ومجاهد ما گرداند وسعی کمیسیون فرهنگی امارت اسلامی و تمام دست اندر کاران مجله را در بارگاه خود بپذیرد امین یارب العلمین.

نومیالی تحلیلګر اودشهامت مجلې مسؤل چلونکی محترم ابوظهیر

# دمورچل هره ګڼه!ګڼې صوري او معنوي ځانګړتیاوي لري!!

مورچل دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي کمیسیون لخوا په خپریدونکو مجلاتو کې هغه میاشتنۍ مجله ده،چې دمختلفو علمي ، سیاسي ، معلوماتي اوتاریخي موضوعاتو علاوه، تل پخپلو پاڼو کې دصلیبي اشغال په وړاندې دروان سپیڅلي جهاد اومقاومت بشپړ جهادي خبرونه او راپورونه چاپول خپل مطبوعاتي رسالت او ځانګړې دنده بولې.

له دې پلوه ویلی شو چې دمورچل اصلي موضوع اوعامه مزاج دهیواد د آزادۍ اوخپلواکۍ له حریمه دفاع ده!! هم دا وجه ده چې دخبرونو، مضامینو، سیاسي تحلیلونو او تبصرو عمومي اُسلوب او ترتیب یې دومره راښکونکی او په زړپوري دی، چې دهرې سویې دلوستوالو اومینوالو علمي او فرهنګي تنده خړوبوي.

په هر کیف! نو دمورچل هره ګڼه له ځان سره ګڼې صوري اومعنوې ځانګړ تیاوي لري !!په خاصه توګه داسلامي امارت دمشرتابه دپیغامونو ، اعلامیو ، جهادي مر کو، او دجهاد دګرمو مورچلونو تاوده خبرونه چاپول دمورچل یو داسي جلا امتیاز او وصف دی چې پکې ورسره نورې مجلې سیالي نشي کولی .چې په راتلونکي کې به دا کار واقعاً له هغو څیړونکو سره زیاته مرسته وکړي څوک چې د۲۱مې پیړۍ دروان جهادي سیر په اړه علمي، حماسي اوتاریخي څیړنې اولیکنې بشپړول غواړي.

په لنډو الفاظو! مورچل دجهادي خبرونو، دعلمي ،سیاسي،او تحلیلي لیکنو یو داسي متنوع امتزاج دی، چې لوستل اومطالعه یې همه جانبه علمي ،حماسي ، تاریخي او ادبي ګټې لري.

هو! مورچل په دې سربیره چې ستر اسلامي اوملی ارزښتونه پالي ، دافغانستان داسلامي امارت جهادي ،سیاسي، علمي او اجتماعي کردار هم پخپله رېښتنې بڼه بیرون ته منعکس او رسوي.

دا جوته ده چې مورچل اوسني وياړلي موقف ته هيڅکله په اسانه لار نده مونـدلې، بلکې دخپل اووه کلـن سفر په اوږدو کې دډيرو ناخوالو ناسمو شرائطو اوتنګو ظروفو په ګرداب کې دملا ماتوونکو کړليچونو او مر ګونـو پړاوونو له لنډولو وروسته اوسني ځای ته رسيدلی.

داچې نن دمورچل اداره دخپلو شاندارو هڅواو دخپل اوږد زيار په نتيجه کې خپلو لوستونکو تـه دمورچـل داوومې کلېزې لمانځلو پرویاړ دمورچل داختصاصي ګڼې ( کالګڼې ) دوړانـدې کولـو تابيـا کـړې دخوښـۍ ځـای دی، زه دمورچل ديوه هميشني لوستونکي په حيث داهڅه ستايم او له زړه نه ورسره خپلې دخلـوص پيروزينـې اوهيلې بدرګه کوم .

داسمه ده چې دمورچـل اووه کلـن يـون بـه لکـه دنـورو رسـنيو غونـدې نيمګړتيـاوي اوتيروتنـې هـم لرلـې، کومې چې دهرې نشريې اوخپرونې سره ملې دي ، خو په ټوله کې مورچـل پـه ۲۱ پيـړۍ کې دتـاريخ دلـوی افغـان اسلامي جهاد دبريااوو او حماسو دانځورولو ويـاړلري ! پـه همـدې مناسبت دمورچـل داووم کـال داختصاصـې ګڼې چـاپولو عـزم او اراده يـو داسـې نوښـت دی چې پـه سـبب يـې دافغانسـتان اسـلامي امـارت مشـرتابه ، فرهنګـي کميسـيون، دمورچـل اداره او مجاهـد ليکوالان اوقلمـوال دمبـارکۍ اوشابسـي ويلـو حقـدار دي، لـه لويـه خدايـه هغوئ ټولوته د مزيد توفيق غوښتنه کوم اوبشپړ ډاډ لـرم چې مورچـل وال ليکـوال اوقلمـوال بـه پـه راتلـونکي کـې دمورچل دمحتوا په لاغني کولو کې دعصر او وخت ټولو مناسبو اړتيا ووته پر پام د متنوعو نوښتونو پـه رامنځتـه کولو او ايجادولو کې خپل صلاحيتونه او استعدا دونه ونـه سپموي اوپـه صـوري اومعنـوي دواړو ډګرونـو کې بـه مورچل نور هم تود اوګرم کړي

پـه همدې هيله !

ابوظهير (دشهامت مجلې مسؤل)

۱٤۳٥/۳/۱۱

**نامتولیکوال، شاعراو دځرک مجلې مسؤل چلوونکی عبید تنویر:**

# مورچل مجلې په دې سربیره چې دجهاد ازانګې یې ژوندی وساتلې، خپلو مینه والو ته یې علمي اوټولنیزه بوخه هم ورکړه

رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه مبارک حدیث کې چې (احمد) یې روایت کړی فرمایی: جاهدواالمشر کین باموالکم و انفسکم و السنتکم، یعني تاسي دمشر کینو اوداسلام ددښمنانوپه وړاندې په مال، نفس اوژبې سره جهادو کړی.

ابن حزم رح، دپورتني حدیث په تشریح کې وایي، د کفاراوباطلوفرقو، قهر اوغضب لدې پر ته چې په حجت، اوقوي استدلال سره راوپارل شي اوبیاپه همدغه استدلال اوقوي برهان سره وځپل شي، بله موثره وسله نه تر ستر ګو کیږي، دهغه په وینا ډیروخت لویي لښکري اوفوځي طاقتونه له شکست سره مخ شي اوخپله ماته تسلیم کړي، خو منطق اودلیل هیڅکله هم پر شاتګ نه مني اودتل لپاره په خپل ځای ولاړوي.

دغه ډول دمسلم شریف روایت دی چې رسول الله صلی علیه وسلم، حضرت حسان بن ثابت، عبدالله بن رواحة او کعب بن مالک ته امر کوي چې له کفارو سره ددښمنی او مقابلې په نیت ژبه و کاروي، اشعار ووایي اودهغوی هجوه اوبدي بیان کړي، کما جاء عند مسلم من حدیث عائشة أنه صلی الله علیه وسلم قال ): ثم اهجوا قریشا فإنه أشد علیها من رشق بالنبل ) نو تاسي دقریشو او کفارو بدي بیان کړی دغه کار په دوی دغیصي له نیزې اوله ګوزار نه هم درون تماميږي.

درنولوستوالو:

مورچـل مجلــه هــم دالله تعــالی دبرحقــي لارې هغــه حقپالــه ســرچینه اودسربښندونکوســپاهیانو اومظلومومسلمانانو هغه ریښتیني غږدی چې له نیږدې یوې لسیزې راهیسي یې له اسلام ، جهاداوافغاني فرهنګ څخه په ډیره میړانه اوپه خوراسختواوحساسوشرایطوکې داسې کلکه دفاع اوساتنه وکړه چې هم یې دمجاهددتوري هربریښ او ګوزار پـه خوراامانت داری اواخلاص سره نړۍ اواومجاهـدولس تـه ورسـاوه ،هـم یـې دامریکـا، نـاټواونورویرغلګرو، ډول ډول نـاکردي اووحشـتونه پـه مداوشـدڅپاره کـړل اوهم یې داسلامي شعایرواوافغاني فرهنګ په مقابل کې دغلیم دفرهنګي هجوم ډول ډول حربي پـه قوي استدلال شنډې اورسواکړې اودنړیوال استعمارپه زړه کې یې ژور ټپونه جوړ کړل .

زه په دې ترڅ کې چې مورچل مجله دروان جهادپه افق کې دحق اوحقیقت یوځلندستوری وینم اودمجاهدینو دحماسواومیړانودساتلواوځلولویوه مهمـه سرچینه اومتعهده غیږ یې ګڼم ، پـه صراحت وایم چې دمورچل مجلې دمسؤلینو اوچلونکو داخلاص اوهمت لویـه نښـه داده چې هغـه دخپـل تاسیس له نیټې تراوسه پرتـه لدې چې کومـه ګڼه یې دځنډ ښکارو ګرځي پـه ټـاکلي مهال یې خپلې زریني پاڼې چې په دیني ، علمي ، جهادي اوهراړخیزو معلوماتو رنګیني وي لورولي .

دمورچـل دبریـالیتوب بلـه علامـه داده چـې دمجاهدینوزړونـه یـې ګټلي اومجاهـدین پـه ډیـرې لیوالتیاله یوې نه بلې ګڼې تـه دانتظارشیبې شمیرې ټکي پـه ټکي اوپاڼه پـه پاڼه پـه ډیرې دلچسپي اوتوجه لولي اودخپلو سنګرونو حماسي ، قرباني او کارنامې پکې لټوي .

لــه متعــال رب جــل جلالــه څخــه ارزولــرم ، چــې دفرهنګــي کمیســون مشــرتابه اودمورچــل مســؤلینواولکنیز پــلاوي تــه نــوردې همــت وروبښــي چــې مورچــل معیــاري ، چټکــه اوپــه غــوره نوښتونوپوښلي وګرځوي

دمورچلوالو دقلم اواحساس ځولی دې له بر کتونواوویاړونوره هم ډکه اوسیرابه شي . امین

نوماند تحلیلګر او لیکوال شاهد غزنیوال :

# مورچل د جهادي مورچلونو یو ریښتونی انځور !

یرغلګرو صلیبیانو په افغانستان باندې د پوځي یرغل تر څنګ زمونږ د ولس په معتقداتو او کلتوري ارزښتونو باندې فرهنګي یرغل هم کړی ، په دغه فرهنګي یرغل کې یرغلګر ان کوښښ کوي چې د هغوئ په خلاف پیل شوی جهادي مقاومت یوه قومي شخړه او مقاومت کوونکي مجاهدین په بیلا بیلو ناسمو نومونو معرفي کړي .

د دې کار لپاره هغوئ کافي امکانات په کار اچولي په سلګونو چاپي او صوتي رسنۍ یې ایجاد کړي ، اجیر لیکوالان او محللین یې استخدام کړي تر څو په فکري لحاظ دهغوئ په خلاف روان جهادي مقاومت بې تاثیره وښیي .خو لله الحمد د افغانستان د مسلمان ملت لخوا د هغوئ دغه فرهنګي یرغل هم له هماغه ډول ماتې سره مخ دی لکه پوځي استراتیژۍ چې یې یو په بله پسې له ناکامي سره مخ دي .

مجاهد لیکوالان او قلموال د خپلو سنګري ورونو تر څنګ ولاړ دي او هره لحظه د هغوئ سرښندنې او فداکارۍ په ښه توګه ترسیموي او بیایې د خپلو جهادي نشراتو له لارې خپل مسلمان ولس ته وړاندې کوي .

د مقاومت د دغو جهادی رسنیو له جملې څخه یوه هم د مورچل وزینه فصلي مجله ده چې په هرو

دریو میاشتو کې دمیواد دپوځي او جهادي واقعاتو په اړه خپریږي .

د مورچل پوځي خپروني کارکوونکو په تیره اووه کلنه موده کې دجهادي مقاومت پوځي پیښې او جهادي عملیات په ښه توګه منعکس کړي .

مورچل مجله زمونږ د جهادي مقاومت په رسنیوکې یوه بیله ځانګړتیالري او هغه داچې دیرغلګرو په خلاف ټول جهادي احداث له بشپړ تفصیل سره د راتلونکي جهادي تاریخ لپاره په خپلو پاڼو کې خوندي کوي.

مورچل مجله د جهادي پیښو تر څنګ یرغلګر دښمن ته د ور اوښتو تلفاتو دقیقه شمیرنه او د هغوئ تفصیلي احصایې هم خپروي چې دغه احصائې په تاریخي لحاظ ډیر ارزښت لري ، ځکه که سبا زمونږ څیړونکي او باحثین د صلیبي یرغلګرو په خلاف په جهادي احداثو لیکنه کوي نو هغوئ به همدغو احصائیوته کومې چې خپله د مجاهدینو په رسنیوکې نشرشوې مراجعه کوي او هغه به دخپلې لیکنې لپاره مستند ماخذ معرفي کوي .

همدا راز مورچل مجله دمقاومت د جبهو له منځه له جهادي او پوځي مسؤلینو سره ژوندۍ مرکې کوي اوله هغوئ نه په نقل قول راپور تاژونه خپروي چې همدغه پوځي چارواکي د مقاومت د جهادي صحنو د شاهدانو په توګه د معرکې ټول تفصیلات په خوارا دقت او امانت داري سره تشریحوي .

له دې پرته مورچل مجله د مجاهدینو لپاره دجهاد اوشهادت په فضیلت کې دیني او علمي مقالې خپروي چې د مجاهدینو د تشویق او تحریض لپاره خپل خاص اثر لري .

د مورچل مجله په خپله یوه برخه کې د جهادي ادبیاتو لپاره ځانګړې ځانګه لري چې په هغه کې جهادي اشعار حماسوي او تشویقي ترانې هم خپروي او د جهادي ادب د مینه والو مینه پرې ماتوي .

مورچل مجلې له تیرو اووکلونو راهیسې په خپل نشراتي فعالیت سره دجهاد فرهنګي مورچل ښه ګرم ساتلی له دې وروسته هم ورته په دغه ستر او ارزښتناک خدمت کې د لابربالیتوب غوښتنه کوو .

الله تعالی دې د مورچل ټول باهمته کارکوونکي لاهم په خپلو جهادي فرهنګي فعالیتونو کې موفق اوبریالي لري . امین

نوماند ځیرونکی او حماسه زیږوونکی شاعر قدرمن شپونکی

# (مورچل) په افغانستان کې دغرب دماتې عینی شاهد او دروان جهادي تاریخ امین

دصلیبی غرب دیرغل په مقابل کې دجهادپیلابیل عسکري، فرهنګي، فکري او سیاسی مورچلونه خپل نقش لري ،چې دهر مورچل ساتونکی ددښمن په مقابل کې په پوره صبر، استقامت او درایت آګاهانه مقابله کوي،او دغرب په لاس دافغانستان دمستعمره کیدلو دمخنیوی او په هغه کې داسلامي نظام دقائمولو لپاره ددې هیواد مسلمان او مخلص بچیان دجهاد او قربانۍ په میدان کې ددښمن مقابلې ته تیاروي.

که له یوه لوري مو مجاهدینو دښمن په پوځي ډګر کې له ماتې سره مخ کړ، او دادی اوس یې تیښتې ته اړ کړی، نو له بل لوري مو دجهاد په صف کې دقلم او فرهنګ سنګر دارانو دجهاد فکري، فرهنګي، مطبوعاتي او د رواني (روحي) جګړې مورچلونه داسې وپالل او دمقابلې لپاره یې تاوده وساتل، چې دښمن یې دسلګونو راډیوګانو، تلویزونونو، انټرنیټي ویب سایټونو او دزرګونو کرایي او بې لاره لیکوالانو، شاعرانو، مسلکي او نامسلکي ژورنالیستانو او په سلګونو فکري، فرهنګي، او تحقیقاتي مراکزو په لرلو مقابله ونه کړای شوه.

دجهاد دمطبوعاتو فکري او فرهنګي فعالیتونو د الله تعالی په فضل او بیا ددې فعالیتونو د ترسره کوونکو او منظموونکو مجاهدینو په مټ وکولی شول، چې د یوه داسې نړیوال کفري ائتلاف په مقابل کې دملت ځوانان دمقابلې لپاره ودروي چې په ملیاردونو ډالره یې زمونږ دمسلمان ولس د تسخیرولو په لاره کې مصرف کړل.

جهادي مطبوعاتو هم دجګړې مشروعیت او حقانیت ثابت کړ، او هم یې د مقابلې لپاره دیو بادر که ځوان نسل روزنه وکړه. هم یې ددښمن توطیې رسوا کړې، اوهم یې خپل ولس او خپلو مجاهدینو ته په براخه پیمانه د اسلام فکري ادبیات وړاندې کړل، او پداسې حال کې یې د کفري نړۍ له مطبوعاتي جریانونو سره په نره سیالي وکړه چې وسائل، مادي امکانیات، مسلکي تجربه او د کار لپاره داطمینان او استقرار فضایې ددښمن له وسائلو او مجهز وضعیت سره د مقایسې وړ نه وو.

دجهادي مطبوعاتو په کتار کې چې په خاص ډول د(مورچل مجلې) کوم ستر مسؤولیت تر سره کړ ،هغه یو بې مثاله مسؤلیت دی ،چې تر پیړیو پیړیو به یې اثر پدې خاوره او ولس کې پاتې وي،او د راتلونکو نسلونو مجاهدین او مبارزین به یې داحسان پوروړي وي.

د( مورچل مجلې) ددې تر څنګ چې خپل ولس او خپلو مجاهدینو ته یې دیني،جهادي او اجتماعي مفید مضامین وړاندې کړل ،تر ټولو مهم او ستر کار یې دا وکړ ،چې دغرب په خلاف دروان جهاد په جریان کې یې د ټولو جهادي عملیاتو تفصیلات په مستند ډول په خپله غیږه کې داسې خوندي کړل ،چې دهر عملیات ځای،وخت،حجم،دښمن ته ور اووښتي تلفات او په عملیاتو پورې اړوند نور جزئیات ور کې په دقیق ډول توثیق شوي دي.

(مورچل مجلې) دروان جهاد دپیښو او پوځي جریانونو دعیني شاهد په توګه دراتلونکو نسلونو تاریخ لیکونکو،فرهنګیانو،څیړونکو او مؤلفینو ته داسې یو باعتباره او مستند آرشیف پریښود ،چې د امریکا دجنایاتو او ددې ولس داسلامي مقاومت هر اړخیز تصویر ور کې په راڼه ډول داسې خوندي شوی، چې هیڅ معاند به ور څخه انکار ونه کړای شي.

دمورچل جهادي مجلې په حقیقت کې دیوه ستر مجهز تحقیقاتي مر کز کار تر سره کړی،او دهیواد له ګوټ ګوټ څخه یې ددې لوېې جګړې دعملیاتو ټول جزئیات یوازې دیو څو تنو قلمي او مطبوعاتي سنګر دارانو په لاس په دومره لویه پیمانه راټول کړي او توثیق کړي دي چې که دا کار کومې غربې تحقیقاتي اداري کولای، نو باید په سلګونو مامورین،ښه ډیر اتصالاتي او ترانسپورتي وسائل او هر کال په  لسګونو میلیونه ډالره بودیجه یې لرلی.

ددې لوی اوستومانوونکي کار په دقیق او منظم ډول تر سره کول پدې دلالت کوي چې ددې (مورچل) ساتونکي دخپل کار په جهادي،علمي او تاریخي اهمیت پوه دي او پدې لار کې یې هرې سختۍ او ابتلا ته خپله دصبر او استقامت اوږه ور کړې ده.

ددې (مورچل) ساتونکي که له یوې خوا ډیر ډیر دتقدیر وړ او ددعاوو مستحق دي ،له بلې خوا ددوستانو له مشورو مستغنی او دناقدانو له نیوکو پورته هم ندي.نو په همدې اساس زه هم دداسې یو چا په حیث چې دجهادجریانات او دهغو مطبوعاتي بهیر څارم، چې پدې لړ کې د(مورچل)مجله په دقت سره لولم او کله ناکله یو نیمه لیکنه هم ور ته کووم ،دې (مورچل )او دهغه ساتونکو ته لاندې څو یادونې او سپارښتنې وړاندې کووم :

۱- سره لدې چې د(مورچل) مجله د روان جهاد دپیښو او جریانونو دتاریخ په توثیق او تدوین کې ستر مسؤولیت ادا کوي خو بیاهم(مورچل) لکه چې نوم یې ښکاري یوه (عسکري) مجله نه بریښي.او داځکه چې دمجلې دمضامینو په برخه کې پوځي مضامین یا نشته، او یا هم په ډیر سطحي ډول کله ناکله ور کې یو څه راغلي وي.

دمجلې د مضامینو په برخه کې زیاته برخه فقهي،عمومي دیني،تاریخي او سیاسي مضامین وي،او دا پداسې حال کې چې داسلامي امارت فرهنګي کمیسیون د همدغه ډول مضامینو لپاره دوه نورې مستقلې د(څرک) او (شهامت )مجلې لري.

ښه به دا وي چې د(مورچل) مجله لکه چې له نامه یې ښکاري، یوه پوځي تعلیمي مجله وي، او ډیر اهتمام یې د اسلام پر پوځي تاریخ، د اسلام د پوځي فاتحینو او دهغوئ پر جنګي کارنامو، پر پوځي، امنیتي او استخباراتي علومو اوفعالیتونو، پوځي استحکام، دعسکري پیښو اوجنګي عملیاتو پر پوځي تحلیل، په ولس کې دمقاومت دفرصتونو او وړ تیاوو پر پیدا کولو او غښتلي کولو، مجاهدینو ته دجنګي تکتیکي او تخنیکي مهار تونو په وربښودلو، ددښمن پر هر اړخیزې پیژند ګلوۍ، ددښمن دجنګي او ستراتیژیکو انګیزو او مقاصدو پر تشخیص، په هیواد کې د دښمن د داخلي ملګرو پر معرفۍ، او دهغوئ دهویت او دهغوئ دمقاصدو دماهیت پر تشریح، مجاهدینو ته ددوئ دقوت اوددښمن دضعف دنقطو پر وربښودلو، د رواني ( روحي) جګړې پر اسالیبو او د تبلیغاتي او فکري جګړې لپاره په مجاهدینو کې دوړ تیا وو پر پیدا کولو او پاللو وي.

ددغه ډول مضامینو او موادو دبر ابرولو لپاره باید له پوځي ماهرینو، عسکري سایکالوژستانو، دعسکري علومو له استادانو او دحربي پوهنتونو له تعلیمي نصابونو څخه استفاده وشي.

داچې مجاهدین اوس پداسې وضعیت کې ندي چې دپوځي روزنې لپاره دې حربي پوهنتونونه، پوځي اکاډمۍ او تعلیمي غونډونه ولري، نو په کار ده چې د پوځي روزنې دغه تشه تر یوه حده د(مورچل) مجلې له لارې ډکه شي. پدې کار سره به له یوې خوا په پراخه پیمانه په مجاهدینو او د ولس په ځوانانو کې ددښمن په مقابل کې پوځي وړ تیا پیدا شي، او له بل لوري به( مورچل )یوازې دجهاد د تاریخ دتوثیق یوه مجله نه وي، بلکې په رښتیا به هم یو (عسکري مورچل) او روزنتون وي.

۲ – همدا اوس د اسلامي نړۍ له بیلا بیلو سیمو مجاهدین په انټرنیټ کې ډیرې قوي عسکري خپروني او مجلې لري، که دمورچل دمجلې مسؤولین دهمدغو جهادي عسکري مجلو له چلوونکو سره خپلې تعلیمي او مطبوعاتي هڅې همغږې کړي، او دهغو له لیکوالانو څخه دپوځي علومو او مضامینو په ډګر کې استفاده وکړي، نو مورچل به په په لږ وخت کې دغه تشه ډکه کړ ای شي.

دامت علماء او دهغوئ پوځي لیکنې او نظریات دامت مشتر که هستي ده ،چې باید په هر هیواد کې له هغو څخه دهماغه هیواد دحالاتو او تقاضاوو مطابق کار واخیستل شي. همدغه کار په طب، صنعت ، تخنیک اونورو ټولو ډګرونو کې په نړۍ کې دود دی.

۳ – داچې د(مورچل) مجلې دامریکایي او نورو غربي یرغلګرو په خلاف دمجاهدینو په لسګونو زره عملیات په دقیق ډول په خپله غبړه کې خوندي کړي دي، نو ددغو معلوماتو دلاډیر مؤثریت او خوندیتوب لپاره مې ددې مورچل سنګر دارانو ته دا وړاندیز دی، چې دمورچل دمجلې دټولو ګڼو دجهادي عملیاتو دبرخې محتوی چې تیار په کمپیوټر کې ور سره شته په یوه منظم او علمي شکل چې دهر ولایت برخه ور کې جلا را ټوله شوې او د تاریخونو تسلسل یې د کلونو او میاشتوپه اساس رعایت شوی وي، په یوه یا څو جلدونو کې هم چاپ کړي، اوهم یې د کمپیوټري برقي کتاب E book په ډول تر تیب کړی. کیدای شي دغه کتاب ته (دامریکا یرغل او زموږ مورچل) او یا بل مناسب نوم ور کړ شي.

پدې کار سره به ددې ستر جهاد دمورچل ټولې لاسته راوړنې په کتابي شکل خوندي شي،او دغه کتاب به دیو لوی علمي او تاریخي سنداو مأخذ په ډول دافغانانو دجهاد او دغرب دماتې عیني شاهد وي. کتاب به کتابخانو او علمي مجامعو ته لاره پیدا کړي،او دراتلونکو نسلونو لپاره دېر دیو په مقابل کې دمقابلې یو سرمشق او الهام بښونکی مرجع وي.

موږ که پرون هم دبیلابیلو تنظیمي سیاسي مجلو تر څنګ دغه ډول یو دجهاد دسترو پیښو واحد مورچل درلودلای، نو نن به مو د ولس له حافظې څخه دروسانو او کمونستانو په مقابل د ستر جهاد دلکونو سترو کارنامو تاریخونه نه وتل،او نه به هم دامریکا په لاس دجوړې اداري دتعلیمي نصاب او اساسی قانون په مقدمو کی هغه ستر جهاد یو(ناورین) او(تیرې ناخوالې) بلل کیده. او نه به هم نن غرب پلوو ددې ولس د دیرشو کلونوجهادونه او قربانۍ دتعلیمي نصاب له تاریخه په آسانه حذفولی شوای.

دپرونـي جهـاد دتـاریخونو او سـترو کارونـامو دخونـدي کولولپـاره دهغــه جهـاد پــه پـای کـې ډیـرو (اســتادانو!!؟)،(فرهنګیانو!!؟) او مشــهورو تنظیمــي لیکوالانــو لــه اســلامي مؤسســو څخــه (دجهــادي دائــرة المعارف)دجوړولو په نامه ښې ډیرې پیسې (نوش جان ) کړی،خو په عمل کې یې نه یوازې داچې څه ونه کړل،بلکې لاړل له یوې مخې دغربیانو لخوا په جوړو شویو مؤسسانو، تحقیقاتي مراکزو او نشراتي ادارو کې منسجم شول، او هغوئ لپاره په کار اخته شول.

نوددې لپاره چې دغه تر خه تجربه بیا تکرار نشي ښه به داوي چې ددې ستر جهاد سترې کارنامې پـه خپـل لاس پـه داسې حال کې په خپله خوندي کړو، چې لا تر اوسه دغرب او مغرضو کړیو دتحریف او تبدیل ګوتې ندې ور اوږدې شوي.

فرهنګي کمیسون او د(مورچل) سنګر داران که دغه کار هم همداسې پـه امانت او متانت وکړي ،لکه چې دغـه تاریخونه او پیښې یې راټولې کړې او توثیق کړې دي،نو ددې جهاد له عظیم تاریخ سره به یې ستر احسان کړی وي.

۴-داچې د(مورچل) مجلې لا لـه پخوا څخه پـه خپلـه غیـر کې د(انځوریز البوم) پـه نامـه دمجاهدینو دبریـاوو او ددښمن دماتې واقعي صحنې خوندي کړې دي ،نو په کار ده دمورچل اداره او یا هم فرهنګي کمیسیون لـه همـدغو عکسونو سره ددښمن د ماتې او دهغه دتلفاتو دصحنو پـه زرګونو نور عکسونه ملګري کړي او هم دهري صحنې دوضاحت لپـاره دهغې داړوندو معلوماتو مختصر نوټ ورسره ولیکي او بیا یې پر ښه کاغذ په رنګین او مجلد ډول په څو ژبو کې چاپ کړي ، نودا به دجهاد دبریاوو او ددښمن دماتې یو داسې تاریخي او مستند شاهد وي ،چې هېڅوک به انکار ور څخه نشي کولی. داکار ددې تر څنګ چې خپل خاص معنوي او فرهنګي ارزښت لري په افغانستان،سیمه او نړۍ کې دخرڅلاو ښه مارکېټ هم لرلی شي.

په پای کی ددې مورچل پالونکو،ساتونکو او ټولو سنګر دارانو ته له الله تعالی څخه د مزید توفیق غوښتونکی یم،الله تعالی دې لا نور هم د دوئ په نیتونو کې اخلاص،په عزم کې رسوخ،په کار کې برکت او په قلم کې زور او تاثیر ور واچوي. آمین. په همدې هیله دګران افغانستان یو (شپونکی).

دهیواد جید عالم اولیکوال محترم مفتی ابویاسر

# دیرغل پر خلاف دامورچل

دمورچل مجله چې کله ناکله ترلاسه کړم، دمجلې نوم مې همدې ته اړباسې چې له سره ترپایه یې وګورم ، ځکه زه دیرغل په خلاف دمورچل سره مینه لرم.

پوهیږم چې مورچل دسنګر دخبرونو اوپېښو لپاره ځانګړې شوي ، ولې زه وایم چې مورچل کې باید یواځې دمورچل دزلمو په کارناموباندې انحصار ونشي ، بلکې مورچل باید دسنګر دپالنې ، دسنګردشازلمیو دمسئولیتونو ، نظامي تاکتیکونو ، اونور دغه ډول معلوماتي مضامینو باندې هم مشتمله وي.

په بل تعبیر مورچل باید دهغوئ په معنوي اکمالاتو هم محیطه وي ،

په اوسنیو شرائطو کې دادوهمه وظیفه هم دمطبوعاتو په اوږو پرته ده ،اوخورا مهمه هم ده ، اواهمیت یې له دې نه ځرګندده چې الهي نصرت ،بریالیتوبونه ، اوفتوحات له همدې سره تړاو لري.

بله خبره مې داوه: څرنګه چې مورچل دسپیڅلي جهاد یوسپیڅلي انځورګره ده نوځکه باید هرڅه یې په حقایقو بناوي ، مطلب داچې په مطبوعاتي ډګر کې یې خبره همداسې پاکه وي ،او په ټنډه یې دعدم واقعیت کوم داغ نه وي.

نور مو په خپل دغه مورچل کې په الهي نصرت نازولي غواړم .

نامتو لیکوال ،شاعر ، نطاق او دالاماره ویب پاڼې مسؤل چلونکی
عبد الستار میوند:

# مورچل، د سنګر ترجمانه مجله

## د مورچل مجلې د کالګنې په مناسبت

تیر ۲۰۱۳ کال له هرې نګاه دمجاهدینو لپاره یوله برياوو او لاسته راوړنو ډک کال وو، په جهادي میدان کې ددې کال په جریان کې دمجاهدینو کاري بریدونو یرغلګر دښمن تېښتې ته مجبور کړ داشغالګرو ځواکونو یو شمیر متحدین تر خپلې ټاکلې مودې (۲۰۱۴) وړاندې په دې مجبور شول چې خپل عسکر له افغانستانه وباسي، یو وخت چې ددښمن ډیره توجه دهیواد جنوب ته وه خپله ټوله پوځي ټیکنالوجي او دجنګ ساز او سامان یې همدې ولایتونو ته متوجه کړي وو او له دې سمت نه یې زیاته ویره درلوده ،خو په ۲۰۱۳ کال کې ددوئ دتصور خلاف دهیواد په شمال کې بدخشان ،فاریاب او سرپل هم ددښمن تر پښو لاندې سره تبې شول .دمجاهدینو دقوي بریدونو له امله یې یو شمیر ولسوالۍ او پراخې سیمې له لاسه ورکړې.

په جهادي او سیاسي لاسته راوړنو برسیره په مطبوعاتي برخه کې هم مجاهدینو ددښمن په وړاندې فرهنګي سنګر ګرم ساتلی وو ،ددښمن له زیاتو فشارونو او پابندیو سره سره بیا هم دفرهنګي کمیسیون نشراتي بهیر په ښه توګه په مخ روان وو، په انلاین انټرنیټي نشراتو برسیره چاپي نشراتي ارګانونو هم پرته له کومې وقفې خپل فعالیت په منظم ډول ترسره کاوه، دفرهنګي کمیسیون له چاپي رسنیو څخه یوه هم دمورچل میاشتنۍ جهادي ،سیاسي او علمي مجله وه، چې داشغالګرو په وړاندې په سنګر کې دولاړو مجاهدینو دپوځي بریاوو او حماسي کارنامو د یو تاریخي ارشیف په توګه په خپله سینه کې دساتلو ترڅنګ یې، همیشه د جهادي ،سیاسي، علمي او هر اړخیزو مطالبو په خپرولو دمینوالو تنده خړوبه کړې.

دقلم دا مورچل چې له تیرو اوو کالور راهیسي دیرغلګرو ځواکونو په وړاندې تود ساتل شوی، دنور وخت په نسبت له ښې محتوا ،ښایسته ډیزاین او صحافت سره پرته له کومې وقفې په مستدامه توګه خپرونې کوي او تر مینوالو رسیږي .

مورچل مجله نه دا چې یوازې دسنګر تازه پیښې عکاسي کوي، بلکې ددې ترڅنګ په زړه پوري علمي، دیني، ادبي او معلوماتي سلسلې لري چې دمورچل دهڅاندو او مخلصو لیکوالانو لخوا ترتیبیږي.

دجهاد فقهي مسایل، داسلام غزوات او سریا، جنګي جنایات، شهیدې قافلې او دمورچل وړمې، دا هغه سلسلې دي چې خوار زیات مراجعین لري او مینوال یې په ډیر شوق لولي. دمورچل مجلې یو بله سلسله چې په دې وروستیو کې پیل شوې دکتونکو توجه یې ډیره جلب کړې، (څو شیبې له اولس سره) داسلامي امارت دویاند محترم ذبیح الله مجاهد دسوالونو او ځوابونو په زړه پوري او جالبه سلسله ده، له همدې لارې داولس دخلګو هغه پوښتنې چې ددوئ په ذهنونو کې وي حل او ځوابیږي، همداراز دهمدې سلسلې په مټ دځینو تازه موضوعاتو او قضایاوو په اړه داسلامي امارت رسمي موقف روښانه کیږي.

په مورچل مجله کې یوه بله ښه اضافه دانځوریز مورچل په نوم دڅو رنګینو صفحو ایجاد دی چې، یرغلګرو ځواکونو ته داوښتو زیانونو دصحنو او دمجاهدینوپه بریدونو کې ددښمن دویجاړو شویو پوځي وسایطو اخیستل شوي انځورونه پکې خپروي او ترمینوالو یې رسوي. واقعا چې هر انځور یې دحال په ژبه خبري کوي، داشغال په وړاندې دمقاومت کوونکو مجاهدینو د لوړ همت او دیرغلګر دښمن دبشپړې ماتې شاهدي ورکوي.

دیادونې وړ ده، دمورچل مجله دکتابي شکل ترڅنګ د انټرنیټ له لارې هم دمورچل دهمکارانو له لوري دالاماره ویب پاڼې ادارې ته رسیږي او دویب پاڼې دمجلو په برخه کې دفرهنګي کمیسیون دنورو مجلو (شهامت، څرک، الصمود او شریعت) ترڅنګ په انلاین توګه نشریږي، باید وویل شي په دې برخه کې یې دالاماره ویب پاڼې دمراجعینو په زیاتوالي کې دپام وړ مرسته کړې.

څرنګه چې دیوې میاشتنۍ مجلې چلول او په هغې کې دتازه جریاناتو او پوځي پېښو اومسائلو ترڅنګ دبېلابېلو سلسلو او مختلفو موضوعاتو په پرلپسې توګه خپرول او تعقیب په عادي حالاتو او شرایطو کې خورا زیاته خواري او منډې غواړي، نو په انقلابي شرایطو او نامناسبو حالاتو کې دمورچل غوندې دیوې پور محتوا مجلې ترتیب، دمورچل مجلې دچلونکوو په ډیر اخلاص، هڅو او صادقانه خدمت دلالت کوي.

لاسونه لپه کوو، څښتن تعالی دې مورچلوالو ته مزید توفیق ورنصیب کړي ترڅو په اینده کې هم نورې په زړه پوري پنځونې وکړې او لا ښه لاسته راوړنې ولري

عبدالستار میوند

دالاماره ویب پاڼې مسئول مدیر

# دمورچلونو مورچل

مجاهد قلموال: عابد - الف لام

مورچل تل د باطل مرکزونه تر برید لاندې نیولي او دحق له دې سنګره یې دحقې داعیې غږپورته شوی، مورچل وتوانېد چې د کبرجن دښمن ټولې دسیسې شنډې او دزوال پرمور ګوټې ودروي، مورچل دسنګر دمجاهد غږ او دهغه دسربښندنو او کردارونو هنداره ده، مورچل دمیډیا او مطبوعاتو په داسې زمول شوي فضا راڅرګند شو چې دوخت ښکېلاک دوخت په میډیا او مطبوعاتو هم برغل کړی و او د واقعیتونوله ویلو ګونګ وو، دمورچل دقلم له شپېلۍ پر باطل له کارنده ګوزارونو سره دخپلومینه والو علمي تنده هم ماتوي او دفقهي احکامو له چینې پرې پرېمانه څاڅکي اوروي، مورچل دمجاهدو قلموالو نه ماتېدونکی سنګر دی چې په پوره متانت، لوړ مورال او ډاډ سره له خپلو اسلامي افکارو کلکه دفاع کوي، الله تعالی دې وکړي چې له هرډول نیمګړتیاوو پرته خپل مسیر په بریالیتوب سره منزل ته ورلنډ کړي، ځکه مورچل زمونږ دهیلوانځور دی او بالاخره مورچل زمونږ دډېرو مورچلونو مورچل دی .

مشهور لیکوال او د شریعت د مجلې مسؤل چلونکی ولید افغان:

# د قلم او فکر د ا مورچل

## دی تل ښېرازه او سرشاره وي

د امریکا په مشرۍ د غربي اشغالګرو له لوري د هېواد د اشغال په هغه ړومبو شپو ورځو کې چې د هېواد د ازادۍ، د دین او ملت نه د دفاع په موخه د اسلام وفادارو او اصیلو بچیانو په تش لاس د نړۍ په ترټولو عصري او پرمختللو وسایلو او وسلو د سمبالو اشغالګرو پرضد جهادي مقاومت منظم او د هېواد په مختلفو برخو کې یې پر دښمن د چریکي بریدونو په نتیجه کې دښمن ته ځاني او مالي تاوانونه ور اړول پیل کړل نو د غمونو او دردونو نه په ډک هغه حالت کې چې په اشغالګرو عسکرو د ډز کولو تصور هم چانه شو کولای د مجاهدینو بریاوو نه د ټولو مسلمانانو او خصوصاً د خپلو هېوادوالو خبرول ډېره ضروري خبره وه خو متأسفانه چې د نړۍ رسنۍ کابو ټولې د غلامۍ په لومو کې راښکېل وې د مجاهدینو حملې یې بېخې نه ښکاره کولې او چې کومه به نه پټېده نو که مجبوراً به یې ښکاره کوله هم ډېره کوچنۍ به یې ښووله او ویل به یې چې ځاني او مالي تلفات نه لري.

دې شالید ته په پام سره دیوې داسې نشرې خورا ډېره زیاته اړتیا وه چې د دښمن پرضد دروان جنګ او په جنګ کې داصل حقایقو نه خلک خبر کړي چې له نیکه مرغه دا اړتیا هغه مهال پوره شوه کله چې مورچل پیل او ترننه یې دوام ومووند ؛ دقلم دې مورچل دخپل وجود ټول کابو تېر ۸ کلونه دټوپک دمورچل سره اوږه په اوږه تېر کړل دټوپک دمورچل نه چې ډز شوی دقلم دې مورچل یې خلکو ته اواز رسولی او هغه مورچل چې کله هم فتح کړی نو دپټولو ټولې هڅې یې دې مورچل ناکامې کړېدي ټوپک اودټوپک اتلوحاملینو چې خپل سنګر اومورچل اباد ساتلی او وده یې ورکړېده نو قلم اوقلموال هم دا سنګر اومورچل ژوندی ساتلی او وده یې ورکړېده ،حقیقت دا دی چې دا او هغه دواړه مورچلو نه ترهغه حده برلاسي او فاتحان دي چې دښمن یې هم اعترافونو کولو ته اړکړیدي.

خو باید دا هم هېر نکړو چې مورچل یوا ځې دوخت اړتیا نده پوره کړې بلکې مورچل یو مستند ارشیف دی او کله چې په راتلونکې کې دصلیبي سترو لښکرو په مقابل کې د اوسني اوږد او کامیاب جهاد تاریخ لیکل کېږي نو همدا مورچل به بیا ترټولو معتبر ماخذ وي.

او دا چې مورچل ته وېښ زیرک او باذوقه مدیریت ور په برخه شویدی نو دمحترمو لوستوالو علمي ،ادبي او سیاسي تنده یې هم کاملاً ماته کړیده.

دجهادي بریاوو دخبرونو دزیاتوالي ترڅنګ چې دمورچل مجلې علمي ،سیاسي او ادبي خوا هم ډېره غني شوه نو ځکه دمجلې دزغم نه خبره بېرون او مجله په کتاب بدله شوه ،دا چې دخورا زیاتو مشکلاتو ترڅنګ په ډېرو کمو وسایلو دمورچل اداره او ټول همکاران هره میاشت دکتاب چاپولو باندې توانېږي دا یې لوی بریالیتوب دی ،دقلم اوقلموال دامورچل دې

تل آباد وي ؛ دخدای نه ورته په ټولو چارو کې بریالیتوب او موفقیت غواړم .

نامتو لیکوال او شاعر قدرمن حاجي ظریف :

# دقلم، سیاست، سنګر او فرهنګ مورچل

دافغانستان د اسلامي امارت دفرهنګي کمیسیون له رسمي مجلو څخه یوه هم مورچل مجله ده، چي په کتابي شکل سره صحافي شوې، نوموړې مجله چې مجاهد ورور شکور (شفق) یې دمدیریت چارې په غاړه لري رښتیا هم لکه چې یوه علمي، سیاسي او جهادي خپرونې لري، نو په ځغرده ویلای شو، چې واقعا داد شرمیدلې او ماتې خوړلې دښمن په خلاف یو مورچل دی، دقلم مورچل، دسیاست مورچل، دفرهنګ مورچل، دفقهې مسایلو مورچل، دسیرت پوهنې مورچل، دشهیدانو دخاطراتو مورچل، دغازیانو مورچل، دحماسو مورچل، ددعوت او ارشاد مورچل، اوولسونو ته درښتینو پیغامونو مورچل دی، چې رښتیا هم مسؤل مدیر او نورو همکارانو یې په ښه توګه خپل مسئولیت او رسالت سرته رسولی او هغه څه چې موږ پورته ذکر کړل، پکې ځایه کړې دي.

زه دنوموړې مجلې په لیکوالانو کې د اسلامي امارت دویاند محترم ذبیح الله مجاهد (حفظه الله) دسوالونو او ځوابونو برخه، دمفتي ابو ماریه صاحب، مفتي ابو محمد حقاني صیب، ابو ظهیر، م م شکیب، سید سعید صاحب او عبدالرؤف حکمت غوندې دتولو ارزښتناکې لیکنې خوښوم او ددې تر څنګ دنوموړې مجلې کتونکو او لوستونکو ته مشوره ورکوم، چې که تاسو غواړئ چې دافغانستان له روانو جریاناتو او له پورتنیو ذکر شویو موضوعاتو نه په ښه توګه ځان خبر کړئ نو باید دمورچل مجلې هره ګڼه په غور سره مطالعه کړئ.

ستاسو ورور حاجي( ظریف )

مشهور لیکوال او شاعر قاري حبیب:

# د ژورنالیزم دا مورچل

له تېرو شپږو کلونو راهیسې مورچل مجله لولم ،په دې مجله مې لومړی ځل په هغو کلونو کې سترګې خوږې شوې چې زموږ په اسلامي هیواد دلویدیځ یرغل په اوج او موج کې وو ، دازادۍ میډیا ستونی غاړبوجن شوی وو او ټولو رسنیو یوازې دامریکا په فرمایش تبلیغات کول .

په هماغو زمولوونکو شرایطو کې مورچل یوه له هغو مجلو وه ، چې د حاکم مطبوعاتي اختناق طلسم یې مات کړ ، په سختو حالاتو کې یې ، په کمو امکاناتو او لږ بشري ځواک په جهادي روحیه مالامالې خپرونې پیل کړې ،دمبارزې بیلابیل پړاوونه یې ووهل ، اوپه سختو شرایطو کې یې زموږ دځوان نسل فکرونه تنویر او مطبوعاتي تنده خړوبه کړه .

مورچل میاشتنۍ چې دامریکا په ضد دافغان جهاد دمیاشتني خبري بولیټن په دود هره میاشت له چاپه راوځي ، په ښایسته او پرمحتوا دیني ، علمي ، ادبي او تحلیلي مطالبو سربیره یې ترټولو داهمیت وړ برخه خبري ارشیف دی ، چې زموږ دجهاد ورځنۍ پیښې په خورا دقت دزمان او مکان له ټولو مواصفاتو سره یوځای خوندي کوي .

دا مجله به په راتلونکې کې دهغو تاریخ لیکونکو ، تحلیلګرانو او څیړونکو لپاره یوه مهمه منبع وي ، چې غواړي په افغانستان دلویدیځوالو دیرغل په اړه څیړنه او پلټنه وکړي .

په دې سربیره په مجله کې نشریدونکي رسمي اعلامیې ، پیغامونه ، مرکې او دبیلابیلو مسائلو په اړه داسلامي امارت دویاندویانو څرګندونې هغه څه دي ، چې دبیلابیلو مسائلو په اړه دمجاهدینو رسمي پالیسي څرګندوي ، چې دسبا ورځې لپاره دمستندو شواهدو په حیث وربانديې استدلال کیدلای شي .

د مورچل دخواریکښو چلوونکو او همکارانو هڅو او اخلاص ته په پام سره زه باور لرم ، چې د متعهد ژورنالیزم دامورچل به نور هم ځواکمن کیږي ، او دجهادي مطبوعاتو په ډګر کې به خپل رول ښه ترا زبادوي .

په همدې هیله
قاري حبیب
۸/۳/۱۴۳۵ هـ ق

نومیالی لیکوال او شاعر سید سعید

# د واقعیتونو هینداره

مـور چـل د اسـتعمار پلـوه رسـنيو بـر عكـس دهيـواد ورځنيـو پيښـو تـه دواقعيـت مطابق انعكاس ور كوي.

مور چل د مور چلوالو د شهكارونو (كمينونو ، تعرضونو ، چريكي بريدونو ، فدايي عملياتو )رښتنی انځورو ړاندي كوي.

مور چل د يرغلګروځواكونـو اودكابل منفور رژيم وحشـتونه اوجنايتونـه (چاپې، بمبارونـه، ړنـدې ډزي، دښـځو ، ماشومانو اوبوډاګانو شـهيدول، دولسـي خلګـو نيـول، شـكنجه كـول، تهديـدول، زنـداني كـول، پـه سـپيو داړل، اونورخورابوږنونكي مظـالم )ترولسونوپوري رسوي.

مــور چـــل داشـــغالګرواودهغوی دملګروپـــه زنـــدانونو كـــي دمظلومـــو بنديانودنوكانوايسـتلو ، پـه‌لاس اوپښـوځوړندولو ، جوش اوبـوكي غـوټـه كولـو ، بې خوبـه كولـو ، پـه يخچـال ډولـه كوټـوكي پـه مياشـتو - مياشتوسـاتلو ، روانـي ځورونـو ، معنوياتوژوبلولواو.....كيسې اوخاطرې بيانوي.

مور چل د مور چلوالو سره دزړه خواله كوي ، دغازيانود پاک نيت ، اوچت مـورال ، كلک هوډ ، وطندوستۍ ، رښتنولۍ سرشاره جذبې اولوړي ارادې داستانونه وړاندي كوي.

مـور چـل دزبـون دښـمن دلويـو- لويو قرارګاوو دتخليـه کولـو ، فريـادونو ، ژړاوو ، غوڅوشووسرونو ، مات شوو هډونو ،پارچه -پارچه شووو سايلو او و سايطو په زړه پـوري تحريري او تصويري صحنې نندارې ته وړاندي کوي.

مورچل دفکري يرغل په طوفاني څپو کي لاهو شوي ډلي او افرادنجات بخښـونکي سواحلو ته سوقوي.

مورچل دفرهنګي تهاجم په توره تياره کي لارورکوته دلاري بل مشال دی.

مورچـل دنننـي ژړژورنـاليزم پـه مـنځ کـي دګوتوپـه شـمارخپل مسـلک ، اسـلامي ارزښتونواوملي منافعوتـه ژمنورسنيوترڅنګ هغـه چـاپي جهـادي ،علمـي ،اوکلتـوري خپرونه ده چي پيښې ، تحليلونه اونظرونه دواقعيت مطابق منعکسوي.

مـور چـل پـه تبرکلنـي يـون سـره دنوروکلونوپـه شـان ډيرهغـه واقعيتونـه وځلـول اوراوسپړل چي استعماري اوکرايه کړشوي ميډيا په ډيري سپين سترګی سره خاروې پرې شيندلې وې.

پـه پـای کـي دمـور چـل مجلـې اداري، همکارانو ،لوسـتونکواوټولوهيوادوالوتـه دمور چل دتېرکلني ګړندي اوبريالي يون مبارکي ډالی کوو ،سترخښـتن جـل جلالـه دي دادجهـادي بهيرانځورګرمـور چـل لاډيرمضـبوط ، غنـي ،روان اولـه بدوسترګوپه امـان لري. امين !

دمور چل دلاښکلا اوپياوړتيا په هيله

# د فکر مورچل

جمال الدین ادیب

د ایمان خبره ده، ګڼي په دومره ځپونکې مرحله کې داسې متوازن فکر او سالمه مبارزه شوني نه بریښي. بهر او دننه د دښمن جال خپور دی. هر ځای کمین دی. لار ډېره سخته او کړلېچې ده. د دښمن او خیانتګرو دفاع له هر شعور او لاشعوره کیږي. ډېر هوښیار خلک وغولېدل او وخویېدل. هغه محفوظ شول چې د الله جل جلاله نظر وربانديې و.

داسې حالت وي، چې نه له هر چا لیکنه غوښتی شي او نه په هر چا باور کولی شي. ځینې وخت لیکوال له امنیتي لحاظه اعتباري وي، خو د فکر له پلوه اعتباري نه وي. ځینې وخت یو لیکوال له دواړو طرفو اعتباري وي، خو د حواشیو له طرفه معتبر نه وي. کله داسې هم وي، چې لیکوال دوضعیت له درکه عاجز وي، هغه چورلیز چې اداره یې روښانول غواړي، د لیکوال فکر نه ور رسیږي یا ورته په زړه پورې نه وي.

چاپ جلا ستونزه ده او توزیع یې جلا. هغه خلک چې دفاترو کې ناست دي، حکومتي پالنه یې د سر سیوری دی، شاید دا ستونزه درک نه کړي، خو هغه خلک دې دا تصور کړي چې د نړۍ هر دولت دې مخالف شي. د هر مخالف دولت استخبارات دې وڅاري. هره شېبه دې څټ د جابرې خپړې په تمه وتخنېږي، نو څنګه ممکنه ده، چې نړۍ هم اعتراف وکړي، چې د جهاد فرهنګي زغل له دوی تېز دی!

داسې حال کې چې متوازن فکر کیږي، سالم مېتود کارول کیږي، منظم فعالیت کیږي او دښمن اعتراف ته مجبوریږي، د یوه ځانګړي شکر ځای دی، ځکه چې ځانګړې مرسته شاملِ حال ده. ایمان د دې هرې سوبې لامل دی. د مادي نسیان د دې ستر معنوي قوت ښودنکی دی.

په سیمه کې د اسلامي فکر د اېل کولو په موخه نړۍ پورته شوه او کېناسته، خو هیڅ یې تر لاسه نه کړل. څومره چې مادي یرغل تېز او خونړی شو، هغومره معنوي مقاومت پر مخ ولاړ. څومره چې د اسلامي فکر پر وړاندې خنډونه راوټوکول شول، هغومره د خنډونو د لرې کولو حوصله پیدا شوه. څومره چې د اصیل اسلامي رنګ د تتولو کار وشو، هغومره وځلېد، داسې چې نړۍ یې حیرانه کړه.

نړۍ شاید دا فکر کاوه چې دا اېلېدونکي ممبرونه دي. ماتې منونکي ممبرونه دي. مایلېدونکي ممبرونه دي. بدلېدنکي ممبرونه دي. اوس یې ولیدل چې دا ممبرونه سر شاره دي. سوبمن دي. ټیکاومن دي. اصیل دي پردی رنګ نه مني...

یو له هغو ممبرونو چې د مرمیو له شنګ وکړنګ سره یې خپله داعیه بدرګه کړه، تر دښمنه یې ورسوله، بلکې د تودو سنګرونو د هر سربښندي مجاهد پاڅون او مقاومت ته یې معنا ورکړه... "مورچل" دی. مورچل په ډېره سخته مرحله کې د مادي یرغل په شا وتمباوه، بلکې بېرته یې هغه یرغل دفاعي حالت ته واړاوه، چې د یوه دبدبه ښندي تکبر په ژبه غږېده. هغه خلک چې د یوې ګلګلمیرې فضا ژورنالزم ته یې وده ورکړه.. بې معنا خلک یې وپرسول. مفاهیم یې واړول. ارزښتونه یې پایمال کړل. "مورچل" بې تفاوته پاتې نه شو او په داسې مېړانه یې کاذبو خولو ته خاورې وروا چولې، چې تاریخ به یې هېر نه کړي!

"مورچل" سره له دې چې لومړی سوچه نظامي وه، خو په کرار او خواږه تدریج ادبي او فرهنګي هم شوه.. فکر یې هم وغوړاوه او سیاست یې هم پرې نه ښود. او سنی مورچل ډېر په زړه پورې دی. د هر چا مورچل دی. فکر، فقاهت، ادب، فرهنګ، ژورنالزم، سیاست، جګړه، مرکه او شننه، څېړنه او معرفت هر څه لري.

لیکنی، مېتودیکه او بحثي نیمګړتیا به وي، خو دا شرایط او دا امکانات او دا ډول مورچل د ښه صلاحیت او استعداد پیغام دی.

# د۲۰۱۳ کال خوږې او ترخې!

## ترتیب: خبیر احمد

افغانستان

که څه هم ۲۰۱۳ امریکایانو اوملګرویې دځان دبري کال بللی وو او دهمدې کال په سر کې یې داستراتیژۍ تاکلی وې چې طالبان به د۲۰۱۴ کال له راتګ وړاندې دومره کمزوري کوي چې دبل کال لپاره دپوځې تحرک اوتکتیک دپلي کولو هیڅ توان ونلري ، خو بیاهم په افغانستان کې طالبانو دامریکایانو ، ناټو اوداخلي قواووپه مقابل کې دخالدبن ولیدعملیات اعلان او په ټول هیواد کې یې دبریدونو لړی خپره اوپراخه وساتله چې دنړیوالو ازادو تحقیقاتي موسسو دتخمینونو پـه اساس د۲۰۱۳ کـال پـه ږومبیو میاشتو کې طالبـانو پنځه زره بریدونه ترسره کړل او زر ګونوخارجي اوداخلي عسکرو تـه یې دسر تلفات اوزیانونه وروا ړول اوهم یې زر ګونه نقلیه وسایط ټانګونه او سوونه چورلکي اوالوتکي له منځه یووړي ، دغه راز د۲۰۱۳ کال بلـه پیښـه پـه افغانستان کې دیوې اجیري لویې جر ګې تـدویر وو چې امریکایانو تـه یې دامنیتي تړون اوقضایي مصونیت پـه تصویب سره اجازه ور کړه چې له ۲۰۱۳ کال ور سته هم په افغانستان کې پاته کیدای شي اوخپلې اشغالګرې قواوې پـه لسو پوځې اډو کې ځای پر ځای کولای شي .

دغه ډول د۱۳ کال مهمه سیاسي پیښه داوه چې پـه قطر کې داسلامي امـارت لـه سیاسي دفتر سره امریکا، ملګرو ملتونو اوسیمه ییزو هیوادونو موافقه وښود چې په ترڅ کې په نوموړې دفتر داسلامي امـارت سپین بیـرغ دیولړ مراسموپه لړ کې ورپـول شو اور سمادفترپر انیسـتل شو ، خو بیاور سته مخالف لوری پـه خپلو ژمنو ونه دریداوپه غبر ګون کې طالبانو دفتر احتجاجا وتاړه .

امریکا:

۲۰۱۳ کـال پـه داسې حـال کې پـای تـه ورسیدچې نړۍ پـه دغـه کـال کې دګڼوخوږو اوترخو پیښـواو حوادثوشاهده وه ، چې یوشمیر هیوادونو تـه یې دبریااوپر مختیـازیری درلودل اوځینونورو تـه یې دشکست ،

ناکامی اورسوایی څرګندېکي لرل؛ خودکال ترېولودوه مهمې پیښې اورسوایي چې امریکاورسره مخ شوه ، هغه داسنودن له لوري دېټوراز ونولوڅول اودامریکادفدرالي دولت تعطیلي وه .

نړۍ تـه هغـه مهال دامریکاڅیره نوره خجلـه اونړیـوال حیثیـت تـه یې درون زیـان واوښت چې ددغـه هیواددملي امنیت مامور( اسنودن ) د۲۰۱۳ کال په اوږدوکې د ۲۰۰ سوو مستندومدار کوپه وړاندې کولوسره په ډاګـه کړه چې امریکانـه داچې دڅپلواتباعوپـه لویـه پیمانـه تلفوني اوبرښـنايي جاسوسي کړي ،بلکې دنړۍ دمهموهیوادونـو دمشـر انواوپه خـاص ډول دارو پـایي ټـولني دګټوهیوادونودلوړپوړوچـار واکو تلفوني خبـري اوبرښنايي لیکونه یې کشف کړي ، اوغوړیې ورته نیولی اوهم یې له ځان سره ساتلي ، چې له شک پرته دغې پیښې اوناولي کړنې دامریکاپه ټنډه دجاسوسی تورداغونووټومبل اود( قرن ) دیوې لویې رسوایی نوم یې ځانته غوره کړ .

دغه راز دفدرالي دولت سقوط اوتعطیلي دامریکایانولپاره هغه بدخبروو چې د۲۰۱۳ کال داکتوبرپه ړومبی نیټه بـاراک اوباماپـه یوه تلویزوني ویناکې وویـل : لـدې وجې چې کـانګریس دامریکادفدرالي دولت بودیجه تصویب نکړه ،نوددولتي بنسټونوچلول اودټولنیزو خدمتونو دادار وفعالیت نورشونی ندی یعني دامریکافدرالي اومرکزي دولت ترهغوچې بودیجه تصویبیږي تعطیل دی .

ایران

ایران په ۲۰۱۳ کال دوه مهم پرمختګونه درلودل چې یوې دجون پـه ۱۴ نیټـه دولسمشـری ټـاکنې وې چې د۱۸ میلونورایوپـه ترلاسـه کولود۴ کلونولپـاره حسن روحـاني دایـران دولسمشرپه توګه وټاکل شو ، دغـه راز دنوموړي هیواد بله مهمه پیښه داوه چې دنومبر په ۲۲ نیټه ایران په دې بریالی شوچې دهستوي پروګرام لـس کلنـه لانجـه لـه ۱+۵ لـوري سـره حـل وګرځـوي ، پـه دې معنـا چـې غـرب دایـران دیورانیمـو دغنـي کولوحـق دیوشمیرمحدودوپه وضع کولو تسلیم کړ اوهم یې په ایران ګټو تحریمونوته دپای ټکی کیښود

مصر :

۲۰۱۳ کـال دمصـرلپاره ترخي اوځورونکي پیښـې اوصـحني لرلـې ، دجـون پـه ۳ نیټـه دمصـرپوځي واکمنـو منتخب ولسمشـر محمـد مرسي لـه واکه دې پلمـه لیـري اوزنـدان تـه ولیـږه چې هغـه پـه څومیاشتوونشو کولای دمصراقتصادي حالت عادي اود خلکواعتراضونوته مثبت ځواب ووایي ، مصري پوځي واکمنوپه همدغه جنایت هم بسیاونکړه ، په زرهاوو تنه هغه مصري وګړي چې دمرسي دبیرتـه راتګ غوښـتنه یـې درلـوده پـه ډیرې بې

رحمي ووژل، په هغه سربیره یې داخوان المسلمین ګوندچې دقاطع مصري ولس یومحبوب ګوندوو ناقانونه اعلان کړ اوپه زرهاوو غړي اوپلویان یې دزندان تورو تمبو ته وغورځول .

سوریه

دسوریې په پلازمینه دمشق او ګڼو نورو ښارونو کې د۲۰۱۳ په اوږدو کې خونړۍ اوله تباهیوډ کې جګړې دسني پاڅون کونکو اودبشار الاسد لـه رژیـم سـره رواني وي ، چې دملګروملتونودیوې تحقیقاتي موسسی دار قامولـه مخي تر اوسه له یولک تنوډیر سوریایان وژل شوي اودوه میلونه ګاونډیو هیوادونو ته مهاجر شوي

دسوریې بله مهمه پیښه داوه چې دبشار الاسد

رژیم په عام ولس کمیاوي وسلي وکارولي چې له امله یې ددمشق ښارپه څنډوکې یونیم زر تنه ووژل شول ، چې دغه عمل په نړیوال ډګر کې داسدپه خلاف لوی غبر ګون راوپاراوه ، تر دې چې امریکاهڅه وکړه تر څو په سوریه مخامخ برید تر سره کړي ، خودروسیې په منځګړیتوب دامریکادبریدمخه ونیول شوه چې بشار الاسدبه خپلې ټولې کمیاوي اوزهرجني وسلي دملګروملتونو پلټونکو تـه سپاري تر څو یې هغوی له منځه یوسي ، چې هماغسي وشول ، اسدټولي کمیاوي وسلي دملګروملتونو پـه لاس لـه منځـه یوړې اودامریکااوغرب لـه مستقیم یرغل څخه یې ځان وژغوره .

قطر :

دجون په ۲۵ نیټه دقطر ۶۱ کلن امیر (شیخ محمدال ثاني ) په خپلې یوې تلویزوني وینـاکې اعلان وکړ چې نور له خپلې ۱۸ کلنې زمامداری نه لاس اخلي اوواک خپل ۳۳ کلن ځوی شاهزاده تمیم تـه سپاري ، کـه څـه هم شیخ محمددغه اقدام یونوعه دیمکراسی وبلله ، خو ډیرۍ کتونکي په دې باورلري چې دقطر ددغې پیښې ترشا دامریکافشاروو اویوه نرمه کودتاډوله وه چې تمیم دخپل پلارپه وړاندې دامریکایانوپه مرسته تر سره کړه

منډیلا :

د۲۰۱۳ کال دډیسمبرپه ۶ نیټه دافریقالوی مبارز (نیلسن منډیلا) چې دنژادي توپیر اوتبعیض دلـه منځـه وړلو دیونامتومبارز په توګه یې نیږدې ټول عمر مصرف کړی وو د۹۵ کلوپـه عمر ومړ ، نوموړي دتورپوستوپه وړاندې دجنوبي افریقاداپار تیـدر ژیم دتبعیضي چلندپـه مقابل کې اوږده اولـه کړاوڅخـه ډکـه مبـارزه سـر ته ورسوله چې له امله یې منډیلا ۲۷ کاله دزندان تور تمبو ته واچول شول ، خوله خپلې داعیې په شانشو، په ۱۹۹۰ کې دیوه ملي اتل پـه توګـه ازاد اوپـه ۱۹۹۴ کې دڅونژادي ازادوټاکنوپـه نتیجـه کې دجنوبي افریقادړومبي تورپوستي ولسمشرپه توګه د۴ کلونولپاره وټاکل شو .

## شمالي کوريا:

داتومي وسلودخورولو په سر دشمالي کورياوامريکاترمنځ شخړه د۲۰۱۳ کال په اوږدوکې نه داچې دحل په لوروخوځيده ، هغه وخت نوره کړ کيچنه وګرځيده چې شمالي کوريادامريکاله لوري ديولړ اقتصادي بنديزونود لګولوپه غبرګون کې داتومي توغنديو نوې ازموينه ترسره کړه ،دهمدې کال په فبروري کې دشمالي کوريارسنيواعلان وکړچې ددغه هيوادپوځ دتيرواتمي بمونوپه مقايسه يوسپک اووړوکی خودچاودني په لحاظ قوي صلاحيت لرونکی بم ازمويلي، دشمالي کوريادغه اقدام له غرب اوامريکاسره لانجه نوره تاوتريخوالي ته يووړه ، روسانواوچين دشمالي کورياپه غيري مستقيم ډول ملاتړ وکړاوصرف ملګري ملتونه يې ددې مستحق وګڼل چې په کوريافشارراوړي اواتومي شخړي ته يې دحل لاري چاري ولټوي ، دشمالي کوريابله مهمه پيښه داوه چې چې دسامبرپه ۳۱ نيټه دشمالي کوريا ددفاعي کميسون مرستيال اودشمالي کوريا درهبر دعمه ځوی جنګ سونګ تاڼک، ظاهرا دمالي خيانت په تور اعدام کړل شو، نوموړی دشمالي کورياوه مهمه اقتصادي څيره وه اوله چين سره يې تودي اړيکي لرلي ، ويل کيږي چې دمالي برلاسی اوپه بهرنی نړی کې زيات شهرت ددې باعث شو چې دشمالي کوريارهبر دهغه په ضدداعدام پريکړه وکړي

## عراق

په عراق کې دتيرې څه باندې يوې لسيزې په څير په ۲۰۱۳ کال کې هم خونړۍ پيښې ، چاودني اودمرګونوسلسلي په توندی رواني وي ،امريکايانو ددغو پيښومسوليت په القاعده اودنورالمالکي په رژيم اړوي اوزياتوي چې که عراق له امريکاسره امنيتي تړون لاسليک کړی وای نودغه حالت به اوس هلته په دې شکل نه وو،ديوشمير تحقيقاتي څيړنوپه بنيادهره مياشت په عراق کې زر تنه وژل شوي اولدې زيات ژوبل شوي ، دچاروکتونکي ددغوپيښنو علت په عراق کې دامريکايانو له لوري پټه لاسوهنه اودسني اوشيعه ترمنځ خپل منځي منافرت ته لمن وهل بولي

## اروپا :

کرواسی ، ۲۸ هيوادوو چې د۲۰۱۳ کال په

اوږدوکې اروپايي اتحاديي په خپل غړيتوب ومانه ، له بلې خوا داروپايي اتحاديی ددوغړو هيوادونو(يونان اوپرتګال ) خلکو دپراخومظاهروپه اچولوسره غوښتنه کوله چې يادې اروپايي ټولنه اومرکزي بانک له دغوهيوادونوسره پراخه مالي مرسته وکړي اويادې نوموړي هيوادونه له ټولنې دوتلوپريکړه وکړي ،چې اروپا

دخپلې ټولنې دوحدت دنجات لپاره له یادو هیوادونو سره دفوق العاده مرستې ژمنه وکړه اوله املـه یې یونان اوپر تګال په اروپایي ټولنه کې پاتې شول.

له بلې خوا داو کراین خلکو دپر اخولاریونو پـه تر سره کولوسره لـه خپـل دولت نه غوښـتل چې دروسیې پرځای له اروپایي ټولنې سره سیاسي اواقتصادي تړونونه لاسلیک کړي، خودولت یې مخالفت کاوه، چې پـه پای کې داوکراین دولت دخلکو غوښتنې ته غاړه کیښوده

د۲۰۱۳ کال په رومبیو کې دواتیکان شپاړسم پاپ، بندیکت، پـه یوه حیرانونکي اقدام کې دخپـل جسـمي زړښت په پلمه له خپل مقام څخه استعفاور کړه اوپر ځای یې پاپ فرانسیس دغه ځای ته وګمارل شو،

ویتنام:

ویتنامی جنرال «وو نوین جیاپ» چې دنوموړي هیوادمغزیلل کیـده اودیوه ملي اتل حیثیت یې لاره د۱۰۲ کلونوپـه عمرومړ، نوموړی لـه ۱۹۴۵څخـه تـر ۱۹۸۰ کلونوپـوري، دشـمالي ویتنـام ددفـاع هغـه وزیـروو چې لـه امریکایی یرغل سره یې په میړانه مقابلـه وکړه اوبالاخره یې امریکایانو تـه تـاریخي شکست اوماتـه ور کړه،، جنرال «وو نوین جیاپ» چې دویتنام دپوځي نابغه لقب یې هم ګټلی وو، په کال ۱۹۵۴ کې فرانسوي استعمار ته په هنداوچین کې هم تاریخي درس ور کړی وو.

دویتنام په اړه د۲۰۱۳ کال بله دپام وړ پیښه داوه چې ددغه هیوادپه یوه لوی ځنګلـه کې یوپلار اوځوی چې ۴۰ کاله یې هلته زندګي کړي وه وموندل شول، هغوی په ویتنام دامریکایي بمباری له ویرې ۴۰ کاله مخکي دغه بې سره اوپایانه ځنګله تـه پناه وروړي وه اوهلتـه یې پـه یوه ونـه کې چې دخوني پـه څیر جوړه وه زندګي کولـه اویونوعه ځنګلي میوه یې خوراک وه، دوی په دې نه وو خبرچې امریکاپه ویتنام کې شکست خوړلی، کله چې یوې ډلې خلکودلر ګیو پریکولوپاره، دتای ترا، منطقي دکوانګ انګای، ځنګله داخل شول دوه تنه یې په داسې حال کې وموندل چې له پاڼویې ځانونو ته جامې جوړې کړي وې، راپوړ ونه وایی پلار اوځوی پـه داسې حال کې کشف شول چې هغوی ډیر کمزوري وو، دپلار عمر یې ۸۲ کاله وواودځوی یې ۴۱ کاله، پلاریې پـه محلي ژبـه خبري کولای شوي، خوځوی یې تنهاپه څو کلموباندې دخبروعبور درلود، اوس دواړه په یوه روغتون کې بستري دي.

# دبشر دحقوقو نړیواله ورځ

## او په نړۍ کې دبشریت بد حالت

شهیدزوی

دقانون په نظر کې به ټول انسانان برابر او په ژوند تېرولو کې به هر څوک ازاد وي؛ په هر طرز او طریقه چې څوک ژوند تېرول غواړي څوک به یې مخه نه نیسي؛ دخپلې رای په ښکاره کولو کې به هر څوک ازاد وي، درنګ، نسل، ژبې، سیمې یا ګروهي له امله به له چا سره ناوړه سلوک نه کېږي؛ قانون ته به ټول وګړي یو ډول مسئول وي؛ هیڅوک به بې له جرمه په ظالمانه ډول نه نیول کېږي او ترڅو چې په یقیني دلیلونو دچا جرم نه وي ثابت مجرم به نه ګڼل کېږي او هیچا ته به جسماني اذیت نه ورکول کېږي.

دا پورتني او دبشر دحقوقو دساتنې لپاره اړین ځنې نور اصول په هغې قانوني مسودې کې راغلي دي چې دنن نه ۷۵ کلونه وړاندې د۱۹۳۸ کال ددسمبر په ۱۰ مې نېټې دملګرو ملتونو په جنرال اسمبلۍ کې دغړو هېوادونو په اتفاق په نړۍ کې دبشر دحقوقو دساتنې په موخه تیاره او منظوره شوې وه؛ دقانون جوړونې ترحده پدې مسودې کې په ډېرې باریکۍ او جور نظر دبشر دحقوقو احاطه شوې وه او دوخت په تېرېدلو پکې ډېر تغیر او تبدیل هم رامنځته شوی ترڅو دوخت غوښتنې پرځای؛ دبشر حقوق دپامالېدو نه بچ او په نړۍ کې دامن او مساوات دقیام په نتیجه کې انساني ټولنه دژوند په ټولو اړخونو کې پرمختګ وکړي. پدې مسودې کې دا هم راغلې وو چې دنړۍ په هر هېواد، دملګرو ملتونو دجنرال اسمبلۍ غړیتوب لري او که نه لازمه ده چې پدې مسودې کې په ذکر شوو اصولو عمل وکړي.

په نړۍ کې دبشر دحقوقو دساتنې لپاره ددې مسودې تیاری او منظوري ډېر ضروري اقدام و چې شوی و او خصوصاً چې ورنه په وړاندې نېږدې ماضي کې دوهم نړیوال جنګ او پکې خو راډېر ستر مالي او ځاني تاوانونه رامنځته شوي وو.

دبشـر دحقوقو دساتنې لپاره دقانون جوړونې دا اقدام او بیا یې منظورېدل دوخت ستره غوښتنه وه دوخت داغوښتنه پوره شوه خو متأسفانه چې دملګرو په اداري کې دغړو هېوادونو په اتفاق دبشـر دحقوقو ساتنې په موخه ددې منظور شوو اصولو نه ګټه یواځې نامسلمان هېوادونو او ولسونو پورته کړه او دمسلمانانو په اړه یې ترننه دعملي نه تطبیق له امله داسې حیثیت غوره کړی لکه چې دا یواځې دنامسلمانو لپاره جوړ او منظور شوی او اسلامي نړۍ ییخي ددې مستحقه نه وه چې ترې ګټه پورته کړي .

دبشر دحقوقو پوهان ټول پدې اعتراف کوي چې په نړۍ واله سطحه دبشر دحقوقو دمنل کېدو او نړیوالتوب هدف هیڅکله هم دا نه و او نه دی چې دهېواد ،ملت ،سیاسي ګوند یا مذهبي ډلې نظریات به په نور وتحمیلېږي او یا به څوک اجازه لري چې دبشر دحقوقو نه به هغه تعبیر کوي کوم یې چې زړه مني بلکې دنړیوالتوب هدف یې ټولو قومونو او ثقافتونو ته درنښت دی خو برعکس چې امریکا او نور لویدیځ نه یواځې دا چې نورو ثقافتونو ته په درنښت ندی قائل بلکې ترڅنګ یې دبشر دحقوقو په نوم پرټولې نړۍ خپل غربي کلتور هم په دومره اهتمام مسلط کول غواړي چې په وړاندې یې یو خنډ هم نشـي زغملای او ددې لارې داصل خنډ یانې مسلمانانو پرضد یې جنګ اعلان کړی دبشر دحقوقو اصولنامه دنورو ثقافتونو او په ځانګړې توګه د ۲ ملیاردو نه دزیاتو انسانانو ددین اسلام دثقافت نه خالي والی خورا ډېر ستره بې انصافي او دمسلمانانو سره دمور او مېرې سلوک دی چې امریکا او دامریکا نور لویدیځوال متحدین ترې ناوړه ګټه پورته کوي .

امریکا او اشغالګر متحدین یې چې د اسلامي نړۍ هر هېواد قبضه کول او پرې یرغل کول غواړي همدا دبشر دحقوقو نه مراعت کولو خبره رامخې ته کړي دبشر دحقوقو نه ددفاع په پلمه په هېواد یرغل وکړي نو بیا دبشـر دحقوقو ترڅنګ دسونو زرو په شمېر پخپله بشر هم ترپښو لاندې کېږي خو نه ترې دملګرو ملتونو او نه هم کومه بله نړیواله اداره پوښتنه کولای شي.

نو دملګرو ملتونو دا داري مسئولیت دی چې دبشـردحقوقو په اصولو ،قوانینو او میکانیزم کې دمسلمانانو ثقافت او لارښوونې په پام کې ونیسي او دتش په نامه تروریزم په خلاف داسلام او مسلمانانو پرضد دپیل شوي جنګ دحمایت نه لاس واخلي ؛ دا جنګ ناشروع جنګ وګڼي ترڅو دنړۍ په ګوډ ګوډ کې دانسانانو دحقوقو احیا یقیني شي .

دبشر دحقوقو دساتنې لپاره وړاندې شوي او منظور شوي اصول هغه مهال دنړیوال حمایت نه برخمن کېدای شي چې پکې ټولو تهذیبونو او ثقافتونو ته یو ځای دقول ترحده نه بلکې په عمل کې دګډون حق ورکړل شي.

دا خبره هم ډېره مهمه ده چې دملګرو ملتونو له لوري دبشر دحقوقو په اړه خپرو شویو اعلامیو کې یوازې هغه څه راځي چې تړاو یې دانساني ژوند دمادي اړخ سره وي، دانساني ژوند دمعنوي او اخلاقي اړخ هیڅ یادونه پکې نه وي، نن چې انساني ټولنې کې دانسانانو له لوري نور ستر ظلمونه روان دي یوازینۍ لامل یې په انساني ټولنې کې دمعنویت او اخلاقي اقدارو فقدان دی.

دنړۍ زبر ځواکونه چې په کمزورو ولسونو او خصوصاً پر مسلمانانو ډېر ستر ظلمونه کوي او پر مظلومو انسانانو دظلمونو دلړۍ ودرولو په موخه ولسونه دخپلو دولتونو پرضد هیڅ اواز نه پورته کوي سبب یې همدا دی چې ولسونه په اخلاقي لحاظ ځانونه دې ته مسئول نه ګڼي؛ مثلاً دغاصب اسرائیلي دولت له لوري ددې دولت دوجود نه تر ننه پر فلسطیني مسلمانانو هر ډول ظلمونه روان دي، هیڅ دانسانانو په نظر ورته نه کتل کېږي نو ځکه یې ټول حقوق تر پښو لاندې کېږي، په ډول ډول پلمو زوړ، ځوان، ستر، کوچني، مېرمن او سړي دامتیاز پرته اسرائیلي وحشي فوځیان هره ورځ په لسګونو فلسطینیان زندانیان کوي چې هورې دزندانیانو دنړیوالو منل شویو ټولو حقوقو نه دمحرومیت تر څنګ دهر ډول تشدد ښکار کېږي داسرائیلي ولس نه خو هسې هم دا تمه نه شي کېدای چې دخپل دولت دظلمونو او وحشتونو پرضد به اواز پورته کړي خو حیرانتیا دبشر دحقوقو دنړیوالو ادارو پدې دومره اسلام دښمنۍ چې شپه ورځ دبشر دحقوقو نه ددفاع چغې وهي خو دلته ورته دبشریت پرضد داسرائیلو دا ستر ظلمونه نه ښکاري.

غزه دخپلو وسېدونکو لپاره په ستري قید خانې بدله ده، داسرئیلو له لوري یې دمحاصرې موده یوې لسیزې ته رسېدونکې ده، دخوراکي توکیو دواګانو، اودسون دموادو دکمښت له امله دغزې اوسېدونکي دسختو مشکلاتو سره مخامخ دي خو نړۍ ته دا هیڅ په نظر نه راځي ځکه چې دغزې اوسېدونکي مسلمانان دي او ظلم پرې داسرائیلو له لوري روان دی.

دقبضه شوي فلسطین ګاونډي هېواد شام کې هم دبشارالاسد دنصیري بې لارې ملېشو له لوري دمسلمانانو سره بې ساري ستر ظلمونه روان دي له ۷ میلیونو نه زیات مسلمانان بې کوره شول؛ داسدي فوځ په مخامخ ډزو او بمباریو کې له ۱۰۰ زرو زیات مسلمانان ووژل شول خو دلته

هم نه یوازې دا چې نړۍ ددې ظلمونو دودرولو لپاره څه ونکړل بلکې دپردې ترشا ددې ټولو ظلمونو حامي وه او په راتلونکي کې یې هم لازیاتو ظلمونو ته هڅوي .

او همدا غربي نړۍ وه چې دمصري فوځ په لاس یې دمحمد المرسي دقانوني دولت په رنګولو خپل رضایت وښود او بیا چې دفوځ دکودتا پرضد داعتراض کولو لپاره راټولو شوو خلکو باندې فوځ حمله وکړه او تر ۴ زرو پورې بې ګناه وګړي یې شهیدان کړل دلته هم همدا غربي نړۍ وه چې دفوځ ددې ستر ظلم نه یې حمایت وکړ او دلته په ډېرې لویې سطحه بشري حقوق تر پښو لاندې شول.

په برما کې هم دمسلمانانو بد حالت له چا پټ نه دی دتېرو څه دپاسه یو کال په موده کې دلته وحشي بودایانو نېږدې ۴۰ زره بې ګناه مسلمانان ووژل د ۵ زرو نه زیاتې مېرمنې دجنسي تېریو ښکار شوې د ۱۰ زرو په شاوخوا کې مسلمانان ژوندي ورک شول او ګڼ شمېر جوماتونه وسوځول شول خو نړۍ ته نه دلته دبشر حقوق ښکارېدل او نه یې هم دظلم

دا ښکار شوي وګړي انسانان ګڼل .

په انګولا کې اوس مسیحي دولت دلته دنېږدې ۵ سوه زرو اوسېدونکو مسلمانانو دجوماتونو دورانولو پرېکړه کړې ،دمسلمانانو په ټولو فعالیتونو یې بندېز لګولی او اسلام یې ناقانونه مذهب اعلان کړ خو دبشریت پرضد په دولتي سطحه ددې ستر اقدام پرضد نه دملګرو ملتونو اداري څه اقدام وکړ او نه یې پرضد اواز پورته کړ ځکه چې دلته هم دظلم ښکار شوي وګړي مسلمانان دي او ټول اقدامات داسلام پرضد شوي .

په افغانستان او عراق کې چې داسلام او مسلمانانو پرضد داعلان شویو صلیبي جنګونو په لړ کې داشغالګرو له لورې دمسلمانانو کوم قتل عام رامنځته شو او په ډول ډول طریقو دبشر حقوق تر پښو لاندې شول نو پدې هکله خو بې ځکه څه نه وایو چې دا خو هر څه دملګرو ملتونو داداري په منظورۍ دبشر د حقوقو دساتنې سترې اتلې امریکا په مشرۍ کې ترسره شول

نو دبشر د حقوقو دساتنې په نوم ددسمبر د ۱۰ مې نېټې په یوازې لمانځلو کار نه کېږي ترڅو چې دنړیوالو له لورې عملي ژمنتیا نه چې له بده مرغه اوس دا ژمنتیا محال برېښي.

# امریکایان دي ولولي !!

الف لام

سیکورټي، سمټي دیوال، اغزن سیم، شګلن بوجونه، سکوټ، ضد ذرې،بولیټپروف موټر اونور....دېته ورته کلمات هغه څه دي، چې تربل هر وخت زیات مو هغه وخت وپېژندل کله چې دامریکامتحده ایالتونو دېر اختیاغوښتني عملي ګامونه واخیستل، تر دې مخکې نړۍ ترډېره په امن کې ژونددرلود اوهیوادونو په خپل منځ کې ښه روابط ساتل .

د تېر ۲۰۱۳ کال دپېښودبېلابېلوارزونوپه لوستومې یوڅه ذهن ته راغله چې ترډېره یې تړاو له امریکایانوسره و، ځکه مې دلیکنې عنوان هم هغوی ته ځانګړی کړ .

نن په نړۍ کې تر ټولو ستره ستونزه دامنیت نشتوالی دی چې په هیڅ ځای کې هیڅوک خوندي نه دي، داخولاڅه کوې چې دډېرو هیوادو ولسونه عملاً له جګړوسره لاس اوګرېوان دي .

که علت اواصلي لامل یې وپوښتو اوپل پسې واخلو،شاید وروستی پل یې ستاسې امریکایانو په درشل ودرېږي، داخبره که په خپل حق کې تېری ګڼۍ اولیکنه مې دتعصب زېږنده بولۍ نوپاتې څونورې کرښې هم راسره ولولۍ !.

زه چې کله دشلمې پېړۍ له اتیایمې لسیزې وروسته دیوېشتمې پېړۍ ترپیله نړۍ ځغلنده ترنظر تېره کړم نو که څه هم دیودوه هیوادوترمنځ به په پوله جګړې وې، ولې په ټوله کې دنړۍ په سطحه امنیت دځمکې له مخې داسې له نه وو رک شوی لکه دیوېشتمې پېړۍ له پیل سره چې ورک شو.

ټول بین المللي روابط اوحکومتي دیپلوماسي، دولسونو په نړدېکت اواجتماعي چاروکې دېرمختګ په هڅومتمر کزې وې ، ولسونو څومره په امن کې ژوند تېراوه، سیلانیان اودیپلوماتان په څومره آزاده فضاکې هرهیوادته له هرډول ګواښ اواندېښنې پر ته تلای شوای .

خودیوبشتمي پېږۍ لـه پیـل سره داهر څه دېرون کیسـه شوه اوداخوا ږه نور هیڅوک نشي څکلی اوس ټوله هڅه له ځانه دفولادي دیوالونو تاوول اودخلکو له منځه لري اوسیدل دي .

داچي په یوبشتمه پېړۍ کي ددي ناخوالو پیـل څنګه وشو ؟ شایددستمبریولسمي پېښي تـه یې ګوته ونیول شي ، خویاده پېښه دنړۍ له اوسني ټول وضعیت سره لـه پر تلـه کولو وروستـه ددې وضـعیت لامـل ګڼـل ؛ عقل دابهـام پـه سـختوپېچلوپر دوکي رانغاړي، ټـول نـا امنـه حالـت تـه دلیـل ګرځول یې ډېرې داسې پوښتنې رابر سیره کوي چې ځواب به یې دبلې پوښتنې لـه زېږولو پر تـه بل څه ونه لري .

دشـکونو اوپوښـتنو دغـه تسلسـل یوڅـه، چـې دیقـین پـه پولـه دروې دېر اختیاغوښـتنې هغـه اشـتهاده چـې متحـده ایـالات یـې داطلـس او آرام سـمندرونو لـه منځـه غځـوي اومعلومـه نـه ده چـې دناټوغږوهیوادو اوخپلونني حلیفانو ته بـه یـې کومـه نېټـه ټـاکلې وي تر څو ددوی تر سیطرې داسې راشي لکه داسیاځیني هیوادونه یې چې دنوین ښکېلاک په ځواک رالاندې کړي .

ددې پوښتنې ځواب چې امریکایانو لومړی وار مسلمانان خپـل هدف وګرځول اودبې رحمۍ هیڅ راز وسله یې تـرې ونـه سپموله، هیوادونـه یـې لاندې اوپـه لکونو یې ووژل، خو اوس یې کومـه نتیجه په لاس کې لري ؟

شایددوی یې ځینې ظاهري جهتونه په ګوته کړای شي، خو دقضیې نورو ابعادوته په پام سره ډېر مهم څه ددوی اوددوی دحلیفانو له ستر ګو پناه دي، اودا دیوې داسې سترې جګړې په محصول کې راتلل چې، پیل یې هم پـه مـذهبي اصطلاح اوصلیبي نوم شوی وي ؛ هغـه ټکی دی چې دګټـات اوبایلات قضاوت یې لوستونکي کولای شي .

اسلامي بیداري، فکري پیروي اوجهادي تصور اوس ددغو یرغلونواوظلمونو هغه نتیجه ده چې له دې مخکې په مسلمانانو کې دومره عامه نه وه، له ټولو هغو هڅو او وړ وړ تبلیغاتوسره چې دجهاد دکلمې د ور ککولو لپـاره ترسره شوو اوس جهـاد پـه مسلمانانو کې دنجـات یـواځینۍ ذریعـه ګڼـل کیږي او مسلمان ځوانان تربل هروخت ډېرپرې سر شاره او باریکیین دي .

هلته چې دهيڅا په فکر اوخيال کې هم دجهاد کلمه په تصور کې نه راتله ياپې ځايي حکومتونو په يو ډول مخه نيولې وه؛ نن يې دنړۍ ډېر وبر خوته دجهاد دعوت رسولی اودهر جبر په وړاندې مقاومت يې کارنده نسخه بللې اوپه اسيا سربېره دافريقا ډېر وبر خوته يې سرايت کړی چې افغانستان، عراق ، فلسطين، صوماليه، مالي، اريتريا، سوډان، سوريه، مصر ، يمن، برما، چيچن اونور يې يواځې دنمونې په ډول يادولی شو، اوبالاخره دامريکاپه منځ کې هم دغڅ اخيستنې ډېرې داسې پېښې ثبت شوې چې تـأثراو تحريک يې بيرته په عـراق اوافغانستان کې دامريکايي سرتېرو له وحشي چلندنه اخيستل شوی و.



دادی وپوښتئ په هرځای کې چې وي يوووړوکی ماشوم اوس جهاد اومجاهد پېژني نه يواځې داچې پېژني يې بلکې شوق اوتمرين يې ټول هغه څه وي چې دنن مجاهدېې ترسره کوي.

ښه نو! اوس ددغې اسلامي بيدارۍ اوځير کتيا په راپيداکېدوسره چابايللې اوچا ګټلي ؟

# حقائق آشکار و پنهان سال ۲۰۱۳ میلادی

حبیب الله ''هلال ''

**آخرین روز سال ۲۰۱۳ را در حالی پشت گذاشتیم که این سال از لحاظ تحولات و وقایع انجام گرفته در آن یکی از سالهای مشهود و متمایز دریک دهه اخیر بوده است، سال ۲۰۱۳ در حالی برای همه جوانب در گیر در افغانستان به پایان رسید که هر کدام از حکومت کابل و اشغالگران بیگانه از رسیدن به اهداف خود در عرصه های سیاسی ، نظامی، اقتصادی و اجتمائی خویش اظهار رضایت می کنند و تحلیلگران نیز به نوبهء خود در مورد دست آوردها و ناکامی های آنها نظراتی را بیان می دارند. اما حقیقتا کدامیک از جوانب در گیر در معضلهء افغانستان توانسته اند در این سال به اهداف خود برسند؟!**

**سال ۲۰۱۳ سال تکمیل پروسهء انتقال مسئولیت های امنیتی از اشغالگران خارجی به نیروهای اجیر افغان بود که از آغاز انتقال خوشبینی های بسیاری در مورد تبلیغ می گردید ولی سکوت مرموز حکومت کابل و اشغالگران خارجی به تعاقب فتوحات مجاهدین امارت اسلامی از شمال کشور بدخشان ، فاریاب ، سرپل و بادغیس گرفته تا ولایات جنوبی و جنوب شرقی حقائق میدانی و ناکامی های نیروهای اجیر داخلی در تحکیم و استحکام ثبات و حفظ مناطق را برهمگان آشکار نموده و ثابت ساخت که این تربیت یافتگان غرب و صلیب نیز همانند باداران خود بسوی لانه های بزرگتر و گویا امن تر خود در حال خزیدن هستند، جنگها و مقاومت های ماهوار و هفته وار مجاهدین در بدخشان، فاریاب و بادغیس (ولایات شمال کشور) که نقطهء ثقل استحکام حاکمیت رژیم کابل دانسته می شود، بیانگر این حقیقت است که حکومت هیچگاهی توانائی مقاومت و نگهداری مناطق و ولایات جنوب که به عنوان خانه های مجاهدین یاد می شوند، را نخواهد داشت.**

**کرزی نیز که روزی خواهان انتقال قدرت بود، بعد از مشاهدهء شکست های پی درپی نیروهای حکومتی با مجاهدین از قوتهای خارجی انتقاد کرد و در مصاحبه ای با بی بی سی در ماه اکتوبر گفت که " قوتهای خارجی بعد از گذشت بیش از یک دهه ماموریت نظامی ثبات را در افغانستان تامین نکرده است در بخش امنیتی، فعالیت های نظامیان خارجی باعث رنج های زیادی گردیده که جان های زیادی گرفته شد و دست آوردی**

وجود ندارد زیرا که کشور حالا امنیت ندارد. منشی ناتو نیز در پاسخ کرزی گفت که هدف انها تقویت نیروهای افغان بوده است نه تامین امنیت کشور بدین معنا اکنون که جنگ افغانستان به بن بست رسیده است هریک از طرفهای اجیر و اشغالگران میخواهند دیگری را در نزد ملت و جهانیان مقصر و مسئول نشان دهند. عملی نمودن پروسهء انتقال در حقیقت خلاصی و رهایی اشغالگران از این مسئولیت مرگبار و خطیر بود، که متعاقبا افزایش بی سابقهء تلفات عساکر اجیر حکومت کابل را نیز در پی داشت که منجر به تسلیمی و فرار این عساکر از پوسته ها و مراکز نظامی گردیدند. که بزرگترین مثال ان هلاکت بیش از ۲۴۲ تن از قومندان بلند رتبهء حکومتی در جریان شش ماه اخر امسال است.

علاوتاً تسلیمی و پیوستن ماهوار صدها تن از منسوبین حکومت کابل (عساکر اردو، پولیس و اربکی) خود نمایانگر حقانیت امارت اسلامی و بالادستی وضعیت نظامی مجاهدین است که در هریک از ماه های می تا سبتمبر ۲۰۱۳ میلادی به ترتیب ۵۲۲، ۴۷۹، ۸۷٦، ۵۰۵ و ۵۹۲ از منسوبین حکومت کابل به مجاهدین پیوستند، در حقیقت مشاهدء وضعیت میدانی این تعداد کثیر از افراد حکومتی را خواسته و ناخواسته به جدائی از نظام منفور کابل واداشته که البته تعداد عساکر پولیس و اردو که از صفوف نظامی فرار کرده اند نیز کم نیست و اگر افزایش بی سابقهء تلفات عساکر اجیر را نیز به ان اضافه کنیم ، شاهد افت مثال زدنی در رژیم کابل در عرصهء نظامی و محاربوی هستیم، البته باید گفته شود که تلفات جانی اشغالگران نیز کم نبوده است. که از جملهء مهمترین آنها میتوان به حملات بر چهار راهی آریانا، مرکز قومندانی استخبارات امریکا(CIA) در کابل و همچنین حمله بر PRT در غزنی و قونسلگری آمریکا در ولایت هرات نام برد، که تلفات جانی سنگینی به مقامات و منسوبین اشغالگران امریکائی و خارجی وارد نمود.

حکومت کابل بعد از رشد و گسترش فساد در وزارتخانه های عدلیه، داخله، معادن،....و حتی معارف و صحت زمینهء فراهم آوری سرمایه های انگفت برای مقامات خویش در داخل و در سطح بین المللی نیز سبب صعود افغانستان به قلهء فساد و کسب مقام فاسد ترین کشور سال در سراسر جهان گردید که این در حقیقت یکی دیگر از هدیه های دیموکراسی و ساختار حکومت مزدور را نمایان ساخت، زیرا فقط افراد شامل در نظام اجیر و گذرا بخاطر مساعد بودن چنین اوضاعی حاضر به بردگی و مزدورگرائی هستند، چون میتوان از هر راه وروش قانونی و غیر قانوی سرمایه جمع نمود، بدون آنکه ترس از فردای حسابی داشته باشی و گرنه چرا یک انسان عاقل و دانا تن به چنین ذلت و رسوائی می دهد.

یکی دیگر از وقایع ثبت شده در صفحات سال ۲۰۱۳ را میتوان رویداد انجام گرفته در ولایت میدان وردگ عنوان کرد که در کنار جنایات اشغالگران امریکائی قتل و کشتار مظلومانهء ۱۸ تن از هموطنان در میدان

ورد گ یک رویداد تکان دهنده بود که در ان اشغالگران با یورش و تجاوز به منازل و خانه های مردم ملکی انها را به قرارگاه های خود می بردند و به شکل وحشیانه ای به شهادت رسانده و اجسادشان را زیر خاک دفن می کردند، و همچنین شهادت ۲۳ تن از اعضای یک خانواده در ولایت لوگر که برای مراسم عروسی فرزندشان ، دوستان و خویشاوندان را جمع نموده بودند که در نتیجهء بمباران اشغالگران وحشی چندین خانواده بطور مکمل به شهادت رسیدند و این دو حادثه جزئ یکی از وقایع دردناک و قابل ذکر بزرگ امسال بودند این حوادث جرئت و اختیار عساکر امریکائی و حکومت امریکا رابصورت عموم در مورد زور و توانائی انها نشان می دهد که حتی اعمالی که انها در کشور خودشان به هیچ شکل و شیوه ای نمی توانند، انجام دهند را میتوانند در افغانستان به طرز دلخواهشان انجام داده و هیچگونه فکر و تشویشی نیز در مورد نداشته باشند، پس وآی از روزیکه به انها مصئونیت قضائی نیز بدهید؟!

از جمله وقایع سال ۲۰۱۳ میلادی که میتوان به ان نیز اشاره نمود ، کاندیداتوری تعداد کثیری از کمونیستان، وطن فروشان ، جنایتکاران و پرورده های غرب از احزاب و جهت های مختلف برای رسیدن به منصب ریاست مزدوری بود که جنجالهای زیادی را در داخل و خارج برپا کرد، طولانی شدن لیست کاندیداتوری و حذف افراد بی بضاعت و کمزور از لیست به علاوه سخپرانی های ، معاملات انجام گرفته در این دوران در نوع خود حقیقت حکومت دست نشانده را نمایان کرده و رسوائی کامل برای تمام کاندیدان این منصب بود.

اما ننگین ترین و شرم ناکترین عمل اجیران و مزدوران غرب و صلیب در سال ۲۰۱۳ تائید و امضاء قرارداد امنیتی با امریکا بود که در ان در کنار وطن فروشی، ملت فروشی و خود فروشی ، اختیار و ازادی کامل قتل و کشتار ملت افغان را در اعطای حق مصئونیت قضایی به نظامیان اشغالگر در بدل چند وعده نان چرب و گرم اعطاء کردند. این پیمان مشهودترین عمل در یک دهه حضور و وجود اشغالگران و عملی ننگین بنام عدهء خاصی از وطن فروشان ثبت تاریخ گردید. اشغالگرانی که بدون اعطائ مصئونیت نیز از هر گونه تعقیب و گریز مصئون هستند، خواستند تا با چنین عملی مسئولیت یک دهه خونریزی و آنچه بعد از این اتفاق می افتد را به گردن، عده ای خاص از شکم پرستان افغانی بیندازند.

یکی دیگر از وقایع مهم روزهای اخر سال ۲۰۱۳ میلادی ثبوت بیگناهی هزاران زندانی در زندان های مخوف وظالم حکومت اجیر و اشغالگران خارجی بود که رئیس کمیسیون تعیین شده خود اعتراف نمود که اکثریت قریب به اتفاق زندانیان بیگناه گرفتار ، زندانی و شکنجه شده اند، او استعمال کلمهء خطرناک و خطرناکترین و یا اتهام قومندان بلندرتبهء طالبان و حزب اسلامی از سوی امریکائی ها برای هریک زندانی را

مضحک عنوان کرد، این بی گناهی زندانیان در حالی عنوان می شود که اکثریت انها سالهای سال را در زندان بگرام نزد اشغالگران خارجی زندانی بودند، و به شکل های مختلفی شکنجه شده و عده ای نیز در زندان به شهادت رسیده اند.

سال ۲۰۱۳ میلادی سال خروج قوتهای اشغالگر خارجی خصوصاً کشورهای عضو ناتو بود، زیرا بعد از سپری شدن بیش از یک دهه ناتو نتوانست اهدافی را که به حصول ان در افغانستان خوش بین بود بدست اورد، بناً هریک از کشورهای عضو به طور مستقلانه تصمیم به خروج نیروهای خود از افغانستان گرفته و تعدادی خروج عساکرشان را تکمیل و بعضیها نیز در حال تکمیل خروج هستند.

علاوه بر اینها حوادث و واقعات بسیاری در جریان امسال اتفاق افتاد که قانون اساسی، نظام دیموکراسی، جوامع مدنی و احزاب سیاسی و حقوق بشری ساخته خود آنها را در دوران سال ۲۰۱۳ میلادی به تمسخر گرفته شد که همهٔ اینها را میتوان از دست آوردهای دیگر نظام تحمیلی یاد کرد. علاوه بر این طولانی شدن جنگ، افزایش تلفات ملکی، تعرض به مقدسات، رعایت نکردن قوانین ساختهٔ خودشان، تلاشی‌های خودسرانه و دستگیری اتباع افغانستان توسط خارجی‌ها، شکنجه افغان‌ها در زندان ها و مراکز نظامیان خارجی، بیکاری، گرانی مایحتاج اولیه مردم، محدود شدن سلطه و حاکمیت رژیم کابل، افزایش ناامنی‌ها، فساد اداری روزافزون و... همه و همه اتفاقاتی است که از یک دهه بدینسو در جریان است ولی در سال ۲۰۱۳ به پائین و بدترین حد خود رسید. اگر در سال ۲۰۱۳ حکومت اجیر تنها با چالش امنیتی مواجه بود، و در این یگانه چالش شکست خورد، چگونه خواهد توانست علاوه بر امنیت با چالش های سیاسی، انتخاباتی، اقتصادی و اجتمائی کنار امده و مقاومت کند.

ما در مدت چهل سال اخیر، ایدیولوژی ها و دستورات تحمیلی مختلف جهان را تجربه کردیم، هریک از این ایدیولوژی ها تلاش داشتند تا یک مشروعیت سیاسی را در افغانستان کسب کنند و بتوانند در این کشور بالای ملت افغان حکومت کنند، اما دیدیم که این ایدیولوژی ها شکست خوردند. زیرا یگانه دستور و قانونی که ملت افغانستان خود را به اطاعت و پیروی از ان مکلف میدانند، دین و آئین اسلام است و این ملت تنها با قائم شدن نظام کامل اسلامی راضی می شوند. بناً من متیقن هستم که در سال آیندهٔ ۲۰۱۴ میلادی مجاهدین در عرصهٔ نظامی خواهند توانست موفقیت های جاری خویش را ادامه داده و روند انرا تسریع ببخشند

# د امیر اطاعت د قرآن او حدیث په پلوشوکې

مولوي سیلاب (عمر)

خدای جل جلاله له خوا په دریمه درجه کې ټاکله شوې ده ، په دې اړوند پروردګار جل جلاله د سورت النسآء په (۵۹) آیت کې داسي فرمایي :

قال لله تعالی :{ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ } .

ژباړه : اي ! هغو کسانو چې تاسو په الله او د هغه په رسول ایمان لرونکي یی ، (یعني د هغه په شرع عمل کوی ) د الله خبره و منئ ( د هغه نافرمانی مکوئ ) او د هغه د رسول خبره و منئ ( چې د خدای له خوا یې حق پیغامونه راوړي دي ) او پر تاسو باندې د حکم د څښتنانو خبره و منئ ( په دې شرط چې معصیت پکښې نه وي) .

په پورتني آیت کې خبره واضح شوه چې لومړی به د الله جل جلاله اطاعت کوئ او دویم د پیغمبر صلی الله علیه وسلم او دریم د هغه امیر د امر چې (منکم) صفت ولري یعني ستاسو غوندې ایمان لرونکی او د خدای جل جلاله شرع ته ژمن وي ، څوک چې لومړی د خدای خبري ته ژمن دي نو هغه الله د هغه امیر د امر د اتباع حکم صادرکړ چې هغه د الله جل جلاله په اتباع کې وي ، معلومه شوه چې د امیر واک ، نفوذ او د هغه د اتباع مراتب په انتظامي امورو کې د خدای جل جلاله له خوا ټاکل شوي دي ، له همدې امله رسول صلی الله علیه وسلم وفرمایل

عَن أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَطَاعَنِي فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَمَنْ أَطَاعَ الْأَمِيرَ وَقَالَ وكيع الْإِمَامَ فَقَدْ أَطَاعَنِي وَمَنْ عَصَى الْأَمِيرَ فَقَدْ عَصَانِي وَقَالَ الْإِمَامَ فَقَدْ عَصَانِي . مسند الإمام أحمد بن حنبل برقم (٧٤٢٨) جـ (٢)صـ (٢٥٢). تعليق شعيب الأرنؤوط وقال : إسناده صحيح على شرط الشيخين .

ژباړه : حضرت ابوهريرة رضی الله عنه وويل : رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل : څوک چې زما اطاعت وکړي، په يقيني ډول هغه د الله اطاعت وکړ، څوک چې زما نافرماني وکړي په يقيني ډول هغه د الله نافرماني وکړه ، او څوک چې د امير اطاعت وکړي (حضرت وکيع وويل : امام ) په يقيني ډول هغه زما اطاعت وکړ ، څوک چې د امير نافرماني وکړي په يقيني ډول هغه زما نافرماني وکړه .

په حقيقت کې د الله جل جلاله ، د رسول صلی الله عليه وسلم او د امير د اطاعت حکم الله جل جلاله صادر کړی دی نو ځکه اطاعت کول اونه کول دواړه الله جل جلاله ته راجع کيږي .

### له شرعي امير سره د بيعت اهميت

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ : سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم سَمِعْتُهُ يَقُولُ :« مَنْ خَلَعَ يَدًا مِنْ طَاعَةٍ لَقِيَ اللَّهَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلاَ حُجَّةَ لَهُ وَمَنْ مَاتَ وَلَيْسَ فِى عُنُقِهِ بَيْعَةٌ مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً ». أَخْرَجَهُ مُسْلِمٌ

أخرجه مسلم ( عن ابن عمر )فى صحيحه (١٤٧٨/٣ ، رقم ١٨٥١) . وأخرجه أيضًا : أبو عوانة (٤١٥/٤ ، رقم ٧١٥٣) ، والبيهقى (١٥٦/٨ ، رقم ١٦٣٨٩) . قال الحاكم ، والالبانی ،وأيمن صالح شعبان صحيح

ژباړه : حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما وويل : ما په خپله له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل ، هغه داسي وفرمايل : کوم څوک چې له اطاعت څخه تش لاسی وي ، د قيامت په ورځ به د الله حضور ته په داسي شان وړاندي شي چې د ځان په ګټه به هيڅ سند ونه لري ، او څوک چې په داسي حال کې مړشي چې د بيعت کړی يي په غاړه کې نه وي ، نو هغه د جاهليت په مړينه مړ دی .

يعني په کومه زمانه کې چې شرعي امير وجود ولري او بيعت ورسره ونکړي نو د مسلمانانو له جماعت څخه جلاشو د جاهليت د زمانې په توګه بې بيعته او بې جماعته مړ

شوی دی اوکه په کومه زمانه کې شرعي امیر وجود ونلري نو د فترت زمانه ده معذور ګڼل کیږي ، له دې حدیث شریف څخه د بیعت او اطاعت اهمیت په لوړه کچه څرګند شو .

عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ : دَعَانَا رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَبَايَعَنَا وَأَخَذَ عَلَيْنَا السَّمْعَ وَالطَّاعَةَ فِي مَنْشَطِنَا وَمَكْرَهِنَا وَعُسْرِنَا وَيُسْرِنَا وَأَثَرَةٍ عَلَيْنَا وَأَنْ لاَ نُنَازِعَ الأَمْرَ أَهْلَهُ قَالَ إِلاَّ أَنْ تَرَوْا كُفْرًا بَوَاحًا عِنْدَكُمْ مِنَ اللَّهِ فِيهِ بُرْهَانٌ. رواه البخارى

ژباړه : حضرت عبادة بن الصامت رضی الله عنه وویل : رسول الله صلی الله علیه وسلم وغوښتو او د بیعت په ترځ کې داسي شرطونه په موږ ولګول : اطاعت به کوئ ، که موږ پرې خوښ وو یا نا خوښه ، که موږ شتمن وو یا محتاج ،که څه هم موږ له خپلو حقوقو بې برخي پاتي شو او په دې خبره چې امیر به له واک څخه نه ایسته کوو ، مګر هغه وخت چې ببرښه کفر ترې څرګند شي ، او تاسي ته ثابته شي چې الله په صراحت او قاطعیت داسي کړه وړه حرام ګڼلي دي .

شننه : یعني د امیرانو اطاعت به کوئ ، که داسي حکم صادر کړي چې زموږ د طبیعت موافق وي اوظاهرا په هغه کې زموږ ګټې نغښتي وي ، یا داسي حکم صادر کړي چې ظاهرا زموږ د طبیعت مخالف وي اجرا یې پرموږ پېټې وي ، او که موږ په مالي لحاظ شتمن یو دحکم اطباع راته اسانه وي یا محتاج او نادار یو د ژوند او معیشت په ستونزوکې ښکېل یو ، ( وماثرة علینا ) همدا راز موږ به اطباع کوو که څه هم امیران زموږ په حقوقو ځان ته ترجیح ورکړي مزې او چړچې وهي ، په کروزینانو کې ګرځي ، پخې بنګلې جوړوي او موږ په وچه ډوډۍ پوري حیران یو ، په پښو پلي مزلونه کوو ، په جونګړو کې ژوند کوو ، یا دکومې رتبې او منصب مستحقین موږ یو خو پرموږ باندې کوم بلچاته ترجیح ورکړل شي هغوی ته وسپارل شي په دې ټولو حالاتوکې موږ د الله جل جلاله او دهغه د رسول صلی الله علیه وسلم په اطاعت مکلف یو ، همدا راز مکلف یو چې د امیر پخلاف به منډې تړرې نه کوو چې له واک څخه یې ایسته کړو ځکه نتیجه یې بې دربغه فساد ، په لوړه کچه دمسلمانانو ترمنځ تفریق او بې اتفاقي ، دښمنانوته دموقع استفاده ، د اسلام د لوړو ارزښتونو له منځه تلل وي ، مګر که څلور شرطونه موجود شي :

لومړی : ( ان تروا ) یعنی دسترګو لیدلی حال یعني علم یقین به وي .

په مجرد ظن ،ګمان ، اوازه ، افواه ، باندي د امير پخلاف چې له قدرت څخه ايسته کړي منډې ترړې جواز نلري.

**دويم** : ( کفرا ) يعني د امير په کړو وړوکې به کفر څرګندوي.يعني په مجرد فسق د امير باندي لکه چې شراب خوري ، زنا کوي ، ظلم کوي ، دهغه پخلاف جګړه جواز نشي پيداکولای .

**درېيم** : ( بواحا ) يعني صريح ، ظاهرا ، باهر ، بادي کفر ترې څرګند شي د بېلګې په توګه د قانون مواد وضع کړي چې سود ، زنا ، شراب ، او داسې نور جائزدي يا خپلي عملې ته ووايي شراب وڅښئ ، زنا وکړئ ، يا سود وکړئ چې څومره کولای شی دغه روا کارونه دي .

**څلورم** : ( عندکم من الله فيه برهان ) يعني د هغې ګناه په حرمت باندي دخدای جل جلاله له خوا صريح او قاطع دليل په لاس موجود وي ، داسې چې کوم ضعيف ياکمزورئ دليل وي ، کله چې دا څلورسره د لائل د يو پادشاه ، رئيس جمهور ، سلطان ، يا اميرالمؤمنين په خلاف موجود شي نو معلومه شوه چې ددغه امير وجود او په قدرت کې پاتې کيدل اسلام او مسلمانانو ته لو زيان دی نو په ولس باندي بيا د توان په صورت کې فرض ده چې د ده په خلاف مبارزه پيل کړي که ضرورت شو آن په وسلوال جهاد لاس پوري کړي په هره وسيله چې ممکن وي له قدرت څخه ايسته کړي ، واک پخپل لاس کې واخلي تر څو يو صالح انسان ورته وټاکې .

### په امير د رعيت حقوق

لکه څه راز چې د امام ، پاچا ، رئيس ، اميرالمؤمنين پر رعيت او مامورينو باندي په ټولو حالاتوکې پرته له معصيته د اطاعت حق دی که دوی پرې خوښ دي يا ناخوښه ، غنيان او شتمن دي يا محتاجه اوبې وزلي دي ، که په دوی باندي ترجيح نورو ته ورکړل شوې وي يا دوی له خپلو حقوقو بې برخي پاتي شوي وي ، يا پر دوی باندي کوم نااهل ګمارل شوی وي دوی صبر پرې کړی وي ، نو همدا راز رعيت هم پرخپل امير باندي په لاندي ډول حقوق لري:

**لومړی** : د رعيت په حقوقوکې به له لوی خدای جل جلاله څخه په خوف کې وي.

**دويم** : له دوی سره به دعدل انصاف په چوکاټ کې چال چلند کوي .

**دریم** : سختي به نه ورسره کوي ، په شاقه امورو به یې نه مکلف کوي چې اکثریت یې اطاعت څخه عاجز وي.

**څلورم** : د دوی چاري به داسي چاته نه سپاري چې په دوی کې ترهغه ښه اهل کار موجود وي .

**پنځم** : د دوی د دنیوي او اخروي امورو د اصلاح په غرض به خاص هدایت او د ښو چارو نصیحت ورته کوي .

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شُمَاسَةَ قَالَ : أَتَيْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَسْأَلُهَا عَنْ شَىْءٍ فَقَالَتْ مِمَّنْ أَنْتَ فَقُلْتُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ مِصْرَ فَقَالَتْ إِنِّى أُخْبِرُكَ مَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ فِى بَيْتِى هَذَا :« اللَّهُمَّ مَنْ وَلِىَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِى شَيْئًا فَشَقَّ عَلَيْهِمْ فَاشْقُقْ عَلَيْهِ وَمَنْ وَلِىَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِى شَيْئًا فَرَفَقَ بِهِمْ فَارْفُقْ بِهِ ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ فِى الصَّحِيحِ عَنْ هَارُونَ بْنِ سَعِيدٍ الأَيْلِىِّ. رواه البیهقی .

أخرجه أحمد (٢/٩٣، رقم ٢٤٦٦٦) ، ومسلم (٣/١٤٥٨ ، رقم ١٨٢٨) . وأخرجه أيضًا : أبو عوانة (٤/٣٨٠ ، رقم ٧٠٢٣) ، وابن حبان (٢/٣١٣ ، رقم ٥٥٣) ، والبيهقى (١٠/١٣٦ ، رقم ٢٠٢٥٣) . قال شعيب الأرنؤوط : إسناده صحيح على شرط مسلم .

ژباړه : حضرت عائشه رضی الله عنها وویل : له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه مې واورېدل هغه وویل : ځما د امت په کوم شي (لوی وي یا کوچنی ) چې څوک مشرتوب چلوي او له هغوی سره سخت چلند کوي ( عملي وي یا ژبني ) اې پروردګاره ! ته سخت چلند ورسره وکړه ، او څوک چې ځما د امت پر کوم شي مشرتوب چلوي او له هغوی سره ښه چلند کوي اې پروردګاره ته له هغوی سره نرمښت وکړه .

تحلیل : ( من امر امتي شیئا ) د فقهاو له نظره د شیئا لفظ نکره دی عموم ترې استفاده کیږي مطلب دا چې دلوی واک څښتنان وي لکه پاچا او تر هغه لاندي دحکومت ټولي څانګي او شعبې یا دکوچني واک څښتنان وي لکه دکور ، کلي ، مدرسې ، مکتب او داسي نور مشرتوبونه دې ټولو ته شامل دی ، هیڅ مشرتوب ترې مستثنی نه دی .

( فرفق بهم ) یعني له دوی سره نرمښت کوي ، له دې نرمښت څخه هیڅکله دا مطلب نه دی چې تر امر لاندي خلګ خپلي مخي ته ازاد پرېښودلای شي چې څه غواړي هغه کوي ، بلکي د نرمښت مطلب دادی چې دنیوي او اخروي دواړو ښېګړو اړوند به د شرع په

حدودوکې دننه د زړه سواندی او مهربانی چال چلند ورسره کوي ، که کوم څوک داسي ونکړي نو د پیغمبري بدواو او ښېراوو مورد وګرځي . اعاذنا الله والمسلمین امین .

عَنْ مَعْقِلِ بْنَ يَسَارٍ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ « مَا مِنْ أَمِيرٍ يَلِى أَمْرَ الْمُسْلِمِينَ ثُمَّ لاَ يَجْهَدُ لَهُمْ وَيَنْصَحُ إِلاَّ لَمْ يَدْخُلْ مَعَهُمُ الْجَنَّةَ ». رواه مسلم .

ژباړه : **حضرت معقل بن یسار رضی الله عنه وویل : له رسول الله صلی الله علیه څخه مې واورېدل هغه وفرمایل** : هر امیر چې د مسلمانانو مشرتوب کوي او د دوی د اصلاح لپاره منډې ترړي ونکړي او ښوو چاروته یې دعوت نکړي ، نو جنت ته د مسلمانانو د ننوتلو په وخت کې به دئ ترې منع شي.

عَنِ مَعْقِلِ بْنَ يَسَارٍقَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ :« مَا مِنْ عَبْدٍ يَسْتَرْعِيهِ اللَّهُ رَعِيَّـــةً يَمُوتُ يَوْمَ يَمُوتُ وَهُوَ غَاشٌّ لِرَعِيَّتِهِ إِلاَّ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ فِى الصَّحِيحِ عَنْ شَيْبَانَ بْنِ فَــرُّوخٍ وَرَوَاهُ الْبُخَارِىُّ عَنْ أَبِى نُعَيْمٍ عَنْ أَبِى الأَشْهَبِ.

ژباړه : **حضرت معقل بن یسار رضی الله عنه وویل : له رسول الله صلی الله علیه څخه مې واورېدل هغه وفرمایل** :کوم بنده ته چې د الله له خوا د هغه له غوښتني سره سم مشرتوب وسپارل شي او روح یې په داسي حال کې له تنه جلا کیږي چې د رعیت په امورو کې خائن وي الله په هغه باندي جنت حرام کړی دی .

**تحلیل** : ( غاش لرعیته) یعني د رعیت د اصلاح او دنیوي اخروي خیر او ښېګڼوته یې فام لرنه نه وي کړې ، په خپلو سیاسي فعالیتونو بوخت وي ، یا د ریاست او مشرتوب په نشه کې غرق وي خپلې مزې او چړچې وهي ، یا له مشرتوب څخه د ناوړه استفادې په توګه د معشیت او عیاشیو مرتکب شوي وي ، ټول اسلامي او ملي ارزشتونه او د خلګو انفرادي او اجتماعي حقوق یې تر پښوو لاندي کړي وي ، داسي مشر چې خپلواک وخت کې له دې ناوړه معاملو څخه لوی خدای ته توبه وړاندي نکړي ، نو الله جل جلاله جنت دهغه ننوتل حرام ګرځولی دی .

اللهم وفق لولاة امورنا الحکم بشریعتک وجعل عملهم للرضاک وهیئ لنا من امرنا رشدا . نور بیا ..

# د جهاد فقهي مسایل

## پنځمه برخه

مفتي ابو محمد" حقاني"

## بیت المال

**بیت المال کې دایښودل شوي فئ مالونو اقسام :**
**دبیت المال دلګښت یا مصرف موارد:**
**دبیت المال دڅلورمې خونې (بیت مال الفئ)خوراهم لګښت ځای**

هغه مالونه چې بیت المال کې جمع کیږي ددې انواعو څخه عبارت دي:
الف: دزکات دټولو انواعو مالونه، چې هغه دظاهري مالونو زکات وي ،که دباطني مالونو ،د حیواناتو څخه وي ،که له کښتونو ،نغدو پیسو او سوداګریزو اموالو څخه وي، چې البته هغه مالونه هم بیت المال ته وړل کیږي، چې دعشر لاروي مامورین یې له خلکو څخه په لاروکې اخلي
ب:دمنقوله غنایمو خمس یا پنځمه برخه ،((چې البته په غیر منقوله غنایمو کې دائمه وو اختلاف دی ،چې حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله تعالی پدې نظر دی ،چې دغیرمنقوله غنیمت(لکه ځمکې ،عقار)دویش یا نه ویش صلاحیت له امام سره دی، د حاکم وخت صلاحیت دی چې پر غانمینو یې ویشي ،که دخپلو خاوندانو سره یې پریږدي او خراج ترې غواړي ،چې څنګه کوي حکم یې نافذ دی حضرت امام مالک رحمه الله تعالی وایې چې ندې ویشل کیږي ، حضرت امام شافعي رحمه الله تعالی وایې چې دمقاتلینو یا غانمینو په منځ کې دې وویشل شي او د حضرت امام احمد رحمه الله تعالی نظرد اسې رانقل شوی، چې هم د امام ابوحنیفه رح سره او هم د امام مالک رح سره موافق دی ))د غیرمنقوله وو غنایمو خمس یا پنځمه برخه به بیت المال ته سپارل کیږي ،ج:دمعدنیانو څخه داخراج شویو سرو زرو ،سپینو زرو او او سپنې خمس به هم بیت المال ته ورکول کیږي ،
د :دجاهلیت وخت کې چې کوم کافر ځمکه کې کوم شئ پانګه کړی وي ،او اوس یې کوم مسلمان استخراج کړي ،نو خمس به یې بیت المال ته او نور به مستخرج یا موندونکې ته ورکول کیږي .هـ: مال فئ هم بیت المال کې ایښودل کیږي او دا هغه مال دی، چې له کفارو څخه له جګړې او آسونو ځغلولو پرته ترلاسه شي.

لکه د(الموسوعة الفقهية )پدې عبارت کې يې تفصيل داسې راغلی:

مَوَارِدُ بَيْتِ الْمَالِ:

مَوَارِدُ بَيْتِ الْمَالِ الأَصْنَافُ التَّالِيَةُ ، وَأَمَّا صِفَةُ الْيَدِ عَلَى كُلٍّ مِنْهَا فَإِنَّهَا مُخْتَلِفَةٌ ، كَمَا سَنُبَيِّنُهُ فِيمَا بَعْدُ

أ - الزَّكَاةُ بِأَنْوَاعِهَا ، الَّتِي يَأْخُذُهَا الإِمَامُ سَوَاءٌ أَكَانَتْ زَكَاةَ أَمْوَالٍ ظَاهِرَةٍ أَمْ بَاطِنَةٍ ، مِنَ السَّوَائِمِ وَالزُّرُوعِ وَالنُّقُودِ وَالْعُرُوضِ ، وَمِنْهَا عُشُورُ تُجَّارِ الْمُسْلِمِينَ إِذَا مَرُّوا بِتِجَارَتِهِمْ عَلَى الْعَاشِرِ.

ب - خُمُسُ الْغَنَائِمِ الْمَنْقُولَةِ. وَالْغَنِيمَةُ هِيَ كُلُّ مَالٍ أُخِذَ مِنَ الْكُفَّارِ بِالْقِتَالِ ، مَا عَدَا الأَرَاضِيَ وَالْعَقَارَاتِ ، فَيُورَدُ خُمُسُهَا لِبَيْتِ الْمَالِ ، لِيُصْرَفَ فِي مَصَارِفِهِ. قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: { وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ... } الآيَةَ (سورة الأنفال / ٤١ ).

ج - خُمُسُ الْخَارِجِ مِنَ الأَرْضِ مِنَ الْمَعَادِنِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْحَدِيدِ وَغَيْرِهَا (ابن عابدين ٢ / ٤٣ . ) ، وَقِيلَ: مِثْلُهَا الْمُسْتَخْرَجُ مِنَ الْبَحْرِ مِنْ لُؤْلُؤٍ وَعَنْبَرٍ وَسِوَاهُمَا (الخراج لأبي يوسف ص ٧٠ ، والمغني ٣ / ٢٧ . ).

د - خُمُسُ الرِّكَازِ ( الْكُنُوزِ ) وَهُوَ كُلُّ مَالٍ دُفِنَ فِي الأَرْضِ بِفِعْلِ الإِنْسَانِ ، وَالْمُرَادُ هُنَا كُنُوزُ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ وَالْكُفْرِ إِذَا وَجَدَهُ مُسْلِمٌ ، فَخُمُسُهُ لِبَيْتِ الْمَالِ ، وَبَاقِيهِ بَعْدَ الْخُمُسِ لِوَاجِدِهِ.

هـ - الْفَيْءُ: وَهُوَ كُلُّ مَالٍ مَنْقُولٍ أُخِذَ مِنَ الْكُفَّارِ بِغَيْرِ قِتَالٍ ، وَبِلاَ إِيجَافِ خَيْلٍ وَلاَ رِكَابٍ (الأحكام السلطانية لأبي يعلى ص ٢٣٥ ، وابن عابدين ٣ / ٢٢٨ ، وجواهر الإكليل ١ / ٢٥٩ ، والقليوبي ٣ / ١٣٢ ، والمغني ٦ / ٤٠٢ . ).

**بيت المال کې داېښودل شوي فئ مالونو اقسام:**

١-هغه ځمکې او غيرمنقوله جايدادونه چې کفارو دمسلمانانو له ويرې پرېښې وي اوهغوئ تري تللي وي ، يعنې جګړه پکې نه وي شوي ،دابه دبيت المال په حکم کې وي((البته په الموسوعة الفقهية کې ددې فئ ځمکې دغنيمت شويو ځمکو سره شباهت ورکړل شوی ، پداسې حال کې چې دغنيمت شوي ځمکې حکم اختلافي دی ، لکه مخکې مو چې وويل دامام ابوحنيفه رح نظر په غنيمت شويو ځمکو کې داسې و ،چې پر غانمينو دويش او نه ويش اختياريې امام ته محول و ، لکه دې عبارت کې چې((اخْتَلَفَ الْفُقَهَاءُ فِي قَسْمِ الأَرْضِ الَّتِي فُتِحَتْ عَنْوَةً ، أَوْ عَدَمِ قَسْمِهَا: فَذَهَبَ أَبُو حَنِيفَةَ إِلَى أَنَّ الإِمَامَ مُخَيَّرٌ بَيْنَ أَنْ يَقْسِمَهَا عَلَى الْمُسْلِمِينَ الْمُقَاتِلِينَ ، أَوْ يَضْرِبَ عَلَى أَهْلِهَا الْخَرَاجَ وَيُقِرَّهَا بِأَيْدِيهِمْ. وَذَهَبَ مَالِكٌ إِلَى أَنَّهَا لا تُقْسَمُ ، وَتَكُونُ وَقْفًا عَلَى الْمُسْلِمِينَ. وَذَهَبَ الشَّافِعِيُّ إِلَى قَسْمِهَا بَيْنَ الْمُقَاتِلِينَ كَمَا يُقْسَمُ الْمَنْقُولُ.

وَرُوِيَ عَنْ أَحْمَدَ مَا يُوَافِقُ رَأْيَ كُلٍّ مِنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَمَالِك. وَالتَّفْصِيلُ فِي مُصْطَلَحِ (أَرْضٍ ف ٢٥ - ٣٢). ثَانِيًا - مَا جَلا أَهْلُهَا عَنْهَا خَوْفًا وَهَذِهِ تَصِيرُ وَقْفًا بِنَفْسِ الظُّهُورِ))، مګر دلته موسوعه کې يوازې دامام شافعي رح نظر ليکل شوی ، چې دا ځمکې به دغنيمت شويو ځکمو غوندې وقف وي او حاصلات به يې ويشل کيږي ،د نورو ائمه وو هم پکې مختلف نظريات شته ، چې دفئ په بحث کې به يې وشنو ))

٢-هغه منقول شيان چې کفار يې پريږدي او دوئ جلا وطن شي ،نو (القيلوبي على شرح المنهاج) کې ليکل شوي، چې دا به دستي ويشل کيږي ،٣-دکفارو څخه چې کوم خراج يا اجرت دمسلمانانو لخوا دتمليک شويو ځمکو اخستل شي ،مسلمان يا ذمي ته به په اجاره ورکړل شي،ياکه صلحاً او عنوةً ځمکې فتح شوي وي، او اوسيدونکيو يا مالکانو ته بيرته سپارل شوي وي، چې ځمکې به ددوئ وي خو مسلمانانو ته به خراج ورکوي،٤-دهغو کفارو پر سرونو ايښودل شوي جزيه ده چې اسلامي هيواد کې اوسيږي ، چې دهغو کفارو په فرد فرد يو معلوم مبلغ ايښودل شوي وي ،چې اسلامي هيوادونو کې اوسيږي او يا په ټولو مشترک مبلغ وضع شوی وي ،٥- داهل ذمه وو عشور يا دهغو اموالو لسمه برخه چې دارالحرب ته پرې سودا ګري کوي ،يا يې په اسلامي مملکت کوي ،په کال کې يو ځل ټاکل شوی مقدار دی ،چې ترې به اخستل کيږي، همداسې داهل حربو عشورهم پکې راځي، چې مستأمن وي ،يعنې پاسپورت او ويزه يې لګولې وي او د سوداګرۍ لپاره اسلامي مملکت ته ځي راځي ،٦-هغه مال دی چې له حربي کفارو سره پرې سوله شوي وي او په سوله کې ترې اخستل شوی وي ،٧-دمرتد او زنديق هغه مال دی، چې وړ يا ووژل شي او مال يې بيت المال کې کيښودل شي ،ځکه دده وراثت نوي، خو احناف علماءد مرتد په مال کې څه تفصيل لري ،٨-دذمي مال دی ،چې هغه ذمي وارث ونلري ،٩-غنيمت شوي ځمکې دهغه چا په مذهب چې دغنيمت شويو ځمکو ويش باندې معترف دي، چې دامام ابوحنيفه رح قول مو پکې مخکې ذکر کړ،چې ددې فوق الذکر ژباړې عبارت داسې دی :

وَالْفَيْءُ أَنْوَاعٌ:

(١) مَا جَلا عَنْهُ الْكُفَّارُ خَوْفًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ مِنَ الأَرَاضِي وَالعَقَارَات ، وَهِيَ تُوقَفُ كَالأَرَاضِي الْمَغْنُومَةِ بِالْقِتَالِ ، وَتُقَسَّمُ غَلاتُهَا كُلَّ سَنَة ، نَصَّ عَلَيْهِ الشَّافِعِيَّةُ (القليوبي على شرح المنهاج ٣ /١٩١.). وَفِي ذَلِكَ خِلافٌ (انْظُرْ: فَيْء).

(٢) مَا تَرَكُوهُ وَجَلَوْا عَنْهُ مِنَ الْمَنْقُولاتِ. وَهُوَ يُقَسَّمُ فِي الحَالِ وَلا يُوقَفُ (القليوبي على شرح المنهاج ٣ / ١٨٨.).

( ۳ ) مَا أَخذَ مِنَ الكُفَّارِ مِنْ خَرَاجٍ أَوْ أُجْرَةٍ عَنِ الأَرَاضِي التِي مَلَكَهَا المُسْلِمُونَ ، وَدُفِعَتْ بِالإِجَارَةِ لِمُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ ، أَوْ عَنِ الأَرَاضِي التِي أُقِرَّتْ بِأَيْدِي أَصْحَابِهَا مِنْ أَهْلِ الذِّمَّةِ صُلْحًا أَوْ عَنْوَةً عَلَى أَنَّهَا لَهُمْ ، وَلَنَا عَلَيْهَا الخَرَاجُ.

( ۴ ) الجِزْيَةُ وَهِيَ : مَا يُضْرَبُ عَلَى رِقَابِ الكُفَّارِ لإِقَامَتِهِمْ فِي بِلادِ المُسْلِمِينَ. فَيُفْرَضُ عَلَى كُلِّ رَأْسٍ مِنَ الرِّجَالِ البَالِغِينَ القَادِرِينَ مَبْلَغٌ مِنَ المَالِ ، أَوْ يُضْرَبُ عَلَى البَلَدِ كُلِّهَا أَنْ تُؤَدِّيَ مَبْلَغًا مَعْلُومًا . وَلَوْ أَدَّاهَا مَنْ لا تَجِبُ عَلَيْهِ كَانَتْ هِبَةً لا جِزْيَةً (المغني ۸ / ۵۰۷ . بيت المال ۲ ) .

( ۵ ) عُشُورُ أَهْلِ الذِّمَّة ، وَهِيَ : ضَرِيبَةٌ تُؤْخَذُ مِنْهُمْ عَنْ أَمْوَالِهِمُ التِي يَتَرَدَّدُونَ بِهَا مُتَاجِرِينَ إِلَى دَارِ الحَرْبِ ، أَوْ يَدْخُلُونَ بِهَا مِنْ دَارِ الحَرْبِ إِلى دَارِ الإِسْلامِ ، أَوْ يَنْتَقِلُونَ بِهَا مِنْ بَلَدٍ فِي دَارِ الإِسْلامِ إِلى بَلَدٍ آخَرَ ، تُؤْخَذُ مِنْهُمْ فِي السَّنَةِ مَرَّةً ، مَا لَمْ يَخْرُجُوا مِنْ دَارِ الإِسْلامِ ، ثُمَّ يَعُودُوا إِلَيْهَا .

وَمِثْلُهَا عُشُورُ أَهْلِ الحَرْبِ مِنَ التُّجَّارِ كَذَلِكَ ، إِذَا دَخَلُوا بِتِجَارَتِهِمْ إِلَيْنَا مُسْتَأْمَنِينَ (الدر وحاشية ابن عابدين ۲ / ۳۹ وما بعدها . ) .

( ۶ ) مَا صُولِحَ عَلَيْهِ الحَرْبِيُّونَ مِنْ مَالٍ يُؤَدُّونَهُ إِلى المُسْلِمِينَ.

( ۷ ) مَالُ المُرْتَدِّ إِنْ قُتِلَ أَوْ مَاتَ ، وَمَالُ الزِّنْدِيقِ إِنْ قُتِلَ أَوْ مَاتَ ، فَلا يُورَثُ مَالُهُمَا بَلْ هُوَ فَيْءٌ ، وَعِنْدَ الحَنَفِيَّةِ فِي مَالِ المُرْتَدِّ تَفْصِيلٌ (الدر المختار وحاشيته ۳ / ۳۰۰ ، وشرح المنهاج ۳ / ۱۸۸ ، وجواهر الإكليل ۲ / ۲۷۹ ، والمغني ۲ / ۲۹۸ ، ۳۰۱ . ) .

( ۸ ) مَالُ الذِّمِّيِّ إِنْ مَاتَ وَلا وَارِثَ لَهُ ، وَمَا فَضَلَ مِنْ مَالِهِ عَنْ وَارِثِهِ فَهُوَ فَيْءٌ كَذَلِكَ (شرح المنهاج ۳ / ۱۳۲ ، ۱۳۷ ، ۱۸۸ ، والمغني ۸ / ۱۲۸ ، ۲ / ۲۹۲ . ) .

( ۹ ) الأَرَاضِي المَغْنُومَةُ بِالقِتَالِ ، وَهِيَ الأَرَاضِي الزِّرَاعِيَّةُ عِنْدَ مَنْ يَرَى عَدَمَ تَقْسِيمِهَا بَيْنَ الغَانِمِينَ (جواهر الإكليل ۱ / ۲۲۰ وحاشية الدسوقي على الشرح الكبير ۲ / ۱۹۰ ، وانظر مصطلح (أرض الحوز )

و:دبيت المال دځمکو غلې او ملکيتونه ، اودمعاملاتو او تجارت ګټه هم دبيت المال له اموالواو مواردوڅخه ده ،ز:سوغاتونه ،تحفې ،وصاياهغه چې بيت المال ته يې خلک دجهاد يا بل کوم عام المنفعه کار لپاره ورکړي ،ح:هغه هدايا چې قاضيانوته يې داسې خلک ورکړي ،چې مخکې به يې نه ورکولې ،يا يې ورکولې خو قاضي سره يې کومه دعوه يا عريضه بنده وه ،نوکه داسې سوغاتونه خپلو خاوندانوته ورنکړای شي، بيا به بيت المال ته سپارل کيږي ،يا هغه هدايا چې امام ته يې اهل حرب ورکړي ،او هغه هدايا چې ددولت مامورينوته يې خلک ورکړي ،ط:په رعيت باندې ددوئ دمصالحو لپاره دپيسو مياشتينۍ يا کلنۍ يا ربعه کې دپيسو ماتې يا چنده اېښودل ،عام ددې څخه چې دادجهاد لپاره وي ،که دبل کوم کار لپاره

،خودا (پررعیت پیسې ایښودل ) به هغه وخت کې حکومت ته روا وي ،چې بیت المال کې دکفاف په اندازه څه شئ نه وي ،که وي بیا نا روا دي......چې دادی دلته به یې عربي متن ولولو:

و - غَلاتُ أرَاضِي بَيْت المَال وأمْلاكه وَنتَاجُ المُتَاجَرَة وَالمُعَامَلَة.

ز - الهِبَاتُ وَالتَّبَرُّعَاتُ وَالوَصَايَا الَّتِي تُقَدَّمُ لِبَيْت المَال للجِهَاد أوْ غَيْره منَ المَصَالح العَامَّة

ح - الهَدَايَا التي تُقَدَّمُ إلى القُضَاة ممَّنْ لَمْ يَكُنْ يُهْدَى لَهُمْ قَبْلَ الولايَة ، أوْ كَانَ يُهْدَى لهُمْ لكنْ لَهُ عنْدَ القَاضِي خُصُومَةٌ ، فَإنَّهَا إنْ لَمْ تُرَدّ إلى مُهْدِيهَا تُرَدُّ إلى بَيْتِ المَالِ(٢) . لأنّ " النّبِيّ صَلّى اللّهُ عَلَيْه وَسَلّمَ أَخَذَ منَ ابْنِ اللُّتْبِيّة مَا أَهْدَيَ إلَيْه "(٣) .

وكَذَلكَ الهَدَايَا التي تُقَدَّمُ إلى الإمَام منْ أهْلِ الحَرْب ، وَالهَدَايَا التي تُقَدَّمُ إلى عُمَّال الدَّوْلَة ، وَهَذَا إنْ لَمْ يُعْطِ الآخذُ مُقَابلهَا منْ مَاله الخَاصّ(٤) .

ط - الضَّرَائبُ المُوَظَّفَةُ عَلَى الرَّعيَّة لمَصْلَحَتهمْ ، سَوَاءٌ أكَانَ ذَلكَ للجهَاد أمْ لغَيْره ، وَلا تُضْرَبُ عَلَيْهمْ إلا إذَا لَمْ يَكُنْ في بَيْت المَال مَا يَكْفي لذَلكَ ، وكَانَ لضَرُورَة ، وَإلا كَانَتْ مَوْرِدًا غَيْرَ شَرْعيّ(٥) ..

(١) المغني ٨ / ٥٠٧ .

(٢) روضة الطالبين للنووي ١١ / ٩٣ ، وشرح المنهاج وحاشية القليوبي ٤ / ٣٠٣ ، والمغني ٩ / ٧٨

(٣) حديث: "أن النبي صلى الله عليه وسلم أخذ من ابن اللتبية... " أخرجه البخاري ( الفتح ٥ / ٢٢٠ ـ ط السلفية ) ، ومسلم ( ٣ / ١٤٦٣ ـ ط الحلبي ) .

(٤) الدر المختار ٣ / ٢٨٠ ، والحطاب والمواق ٣ / ٣٥٨ ، وانظر فتاوى السبكي ١ / ٢١٥ ، نشر مكتبة القدسي ١٣٥٢هـ.

(٥) ابن عابدين ٢ / ٥٧ ، والأحكام السلطانية لأبي يعلى ص ٢٣٠ .

أخذَتْ تُنْفَقُ في المَصَالح العَامّة ، فَتَكُونُ بذَلكَ منْ حُقُوق بَيْت المَال.

وَوَرَدَ أنّ عُمَرَ رَضيَ اللهُ عَنْهُ صَادَرَ شَطْرَ أمْوَال بَعْض الوُلاة ، لمَّا ظَهَرَ عَلَيْهمُ الإثْرَاءُ بسَبَب أعْمَالهمْ ، فَيَرْجعُ مثْلُ ذَلكَ إلى بَيْت المَال أيْضًا

**دبیت المال دلګښت یا مصرف موارد:**

عموما دبیت المال دلګښت ځایونه دمسلمانانو عمومي مصالح دي، خو دمصرف صلاحیت به یې له حاکم وخت سره وي ،دخپل اجتهاد له مخې به یې په مورد ضرورت ځای کې لګوي ، اوکله چې فقهاء په مطلق شکل وو ایې چې :دده نفقه په بیت المال کې ده ،موخه ترې دبیت المال ټولې خونې یا بیوت نه وي ،بلکې بیت رابع یا څلورمه خونه ترې مراد وي، ځکه پدې خونه کې دعامو مصالحو لپاره مال زیرمه شوی وي ،دا چې کوم کوم ځای کې به یې امام

مصرفوي په لاندې ډول به يې مورد ضرورت ځايونه وليکل شي ،خو دا بـه ټـول نـه وي ،اونـه بـه پـدې کې حصر واختصاص وي ،بلکې نور داسې ورته مورد ضرورت ځايونه هم شته، چې امـام به يې له بيت المال نه پوره کوي، هغه چې فقهاوو ليکلي وروسته به راشي، الموسوعة الفقيـة کې داسې ليکل شوي چې : مَصَارِفُ بَيْتِ مَالِ الفَيْءِ:

مَصْرِفُ أَمْوَالِ هَذَا البَيْتِ المَصَالِحُ العَامَّةُ لِلمُسْلِمِينَ ، فَيَكُونُ تَحْتَ يَدِ الإِمَامِ ، وَيَصْرِفُ مِنْهُ بِحَسَبِ نَظَرِهِ وَاجْتِهَادِهِ فِي المَصْلَحَةِ العَامَّةِ.

وَالفُقَهَاءُ إِذَا أَطْلَقُوا القَوْلَ بِأَنَّ نَفَقَةَ كَذَا هِيَ فِي بَيْتِ المَالِ ، يَقْصِدُونَ هَذَا البَيْتَ الرَّابِعَ ؛ لأَنَّهُ وَحْدَهُ المُخَصَّصُ لِلمَصَالِحِ العَامَّةِ ، بِخِلافِ مَا عَدَاهُ ، فَالحَقُّ فِيهِ لِجِهَاتٍ مُحَدَّدَةٍ ، يُصْرَفُ لَهَا لا لِغَيْرِهَا . وَفِيمَا يَلِي بَيَانُ بَعْضِ المَصَالِحِ الَّتِي تُصْرَفُ فِيهَا أَمْوَالُ هَذَا البَيْتِ مِمَّا وَرَدَ فِي كَلامِ الفُقَهَاءِ ، لا عَلَى سَبِيلِ الحَصْرِ وَالاسْتِقْصَاءِ ، فَإِنَّ أَبْوَابَ المَصَالِحِ لا تَنْحَصِرُ ، وَهِيَ تَخْتَلِفُ مِنْ عَصْرٍ إِلَى عَصْرٍ ، وَمِنْ بَلَدٍ إِلَى بَلَدٍ .

## دبيت المال دڅلورمې خونې (بيت مال الفئ) خورا اهم لګښت ځاى

الف (عطاء) : تر ټولو مهم مصالح چې دبيت المال دڅلورمې خونې (بيت مـال الفئ) څخـه پرې امام لګښت کولاى شي ، يوه يې عطاءمال دى ،عطاء هغه مال ته وايې چې په کال کې يـو کرت يا دوه کرته له بيت المال څخه را ايستل کيږي ،خو رزق بيا هغې ته وايې چې هره مياشت له بيت المال څخه هغو خلکو تـه ورکول کيږي چې دبيت المال پـه ديـوان کې سـجل شـوي وي ،دويمه خبره داده چې دعطاء اهل يا ددې مستحق خلک څوک څوک دي ؟دې خبره کې دائمـه وو څه اختلاف کتل کيږي ،داحنافو له نظره چې دحنفي مذهب له معتمدو کتابونو څخـه څـومره معلومات کيږي، داسې برداشت کولاى شو ،چې نـن سبا يې مسـتحقين ټول هغـه څوک دي ،چې ددين پـه کـاروا او اموراتومصروف دي ، عـام ددې څخه چې مجاهدين وي ،که مفتيـان ،قاضيان او که مدرسين ،يا نور ديني پـالي ،علامـه ابن عابدين رح پـه خپلـه مشـهوره حاشـيه ردالمحتارکې ، صاحب د(العناية شرح الهداية) صاحب د (الدرالمختار علامـه الحصکفي او صاحب د(النافع الکبير) داسې ليکـي چې: داسلام پـه ابتـداء کې بـه دبيت المـال څخـه عطاء يوازې هغو خلکو ته ورکول کيده ،چې هغوته به يوه ډول مزيت او سابقه په اسلا م حاصله وه ، لکـه دحضـرت رسـول الله ﷺ ازواج مطهـرات ،اولاديـې ،مهـاجرين او انصار،وروسـته هـر هغـه څوک دعطاء اهل وګرځول شول ،چې هغه کوم ديني خدمت کوي ،نه يوازې مقاتله يا مجاهدين ،بلکې قاضـيان ،مفتيـان او مدرسـين ! همداسـې عـام علمـاء ،طالبـان، دسـاحل سـاتونکي

اونوروته شامليږي ، خو بيا په(الموسوعة الفقهية )کې دحنابلوورح او شوافعورح په(احد قوليه )يعنې ددوه اقوالوڅخه په يوه کې وايي چې (عطاء)دبيت المال هغه برخه ده ،چې ټول مسلمانان پکې برخه ولري،چې تفصيل له حوالوسره لاندې عبارتونوکې متناً رانقل شوى دى:

وَمِنْ أَهَمِّ الْمَصَالِحِ الَّتِي تُصْرَفُ فِيهَا أَمْوَالُ هَذَا الْبَيْتِ مَا يَلِي:

أ - الْعَطَاءُ ، وَهُوَ نَصِيبٌ مِنْ بَيْتِ مَالِ الْمُسْلِمِينَ يُعْطَى لِكُلِّ مُسْلِمٍ ، سَوَاءٌ أَكَانَ مِنْ أَهْلِ الْقِتَالِ أَمْ لَمْ يَكُنْ. وَهَذَا أَحَدُ قَوْلَيْنِ لِلْحَنَابِلَةِ قَدَّمَهُ صَاحِبُ الْمُغْنِي ، وَهُوَ كَذَلِكَ أَحَدُ قَوْلَيْنِ لِلشَّافِعِيَّةِ هُوَ خِلاَفُ الأَظْهَرِ عِنْدَهُمْ. قَالَ الإِمَامُ أَحْمَدُ: فِي الْفَيْءِ حَقٌّ لِكُلِّ الْمُسْلِمِينَ ، وَهُوَ بَيْنَ الْغَنِيِّ وَالْفَقِيرِ..... وَالْقَوْلُ الثَّانِي لِلْحَنَابِلَةِ ، وَهُوَ الأَظْهَرُ عِنْدَ الشَّافِعِيَّةِ: أَنَّ أَهْلَ الْفَيْءِ هُمْ أَهْلُ الْجِهَادِ الْمُرَابِطُونَ فِي الثُّغُورِ ، وَجُنْدُ الْمُسْلِمِينَ ، وَمَنْ يَقُومُ بِمَصَالِحِهِمْ - أَيْ بِالإِضَافَةِ إِلَى أَبْوَابِ الْمَصَالِحِ الآتِي بَيَانُهَا . وَأَمَّا الأَعْرَابُ وَنَحْوُهُمْ مِمَّنْ لاَ يُعِدُّ نَفْسَهُ لِلْقِتَالِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلاَ حَقَّ لَهُمْ فِيهِ ، مَا لَمْ يُجَاهِدُوا فِعْلاً . (الموسوعة الفقهية ).

وله: (في زماننا ) قال في العناية: وفي الابتداء كان يعطي كل من كان له ضرب مزية في الاسلام كأزواج النبي (ص) وأولاده والمهاجرين والانصار.

قوله: (القاضي والمفتي والمدرس) عبارة البحر مثل القاضي، والمفتي والمدرس: وهي أولى لشمولها نحو المقاتلة اه ح. (حاشية رد المحتار/ج۴/ص۴۰۳)

الْعَطَاءُ مَا يُكْتَبُ لِلْغُزَاةِ فِي الدِّيوَانِ وَلِكُلِّ مَنْ قَامَ بِأَمْرٍ مِنْ أُمُورِ الدِّينِ كَالْقَاضِي وَالْمُفْتِي وَالْمُدَرِّسِ ، وَفِي الِابْتِدَاءِ كَانَ يُعْطِي كُلَّ مَنْ كَانَ لَهُ ضَرْبُ مَزِيَّةٍ فِي الْإِسْلَامِ كَأَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَوْلَادِ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ (العناية شرح الهداية /ج۸/ص۱۲۲)

(وما أخذ منهم بلا حرب) ومنه تركة ذمي وما أخذه عاشر منهم.

ظهيرية (مصالحنا) خبر مصرف (كسد ثغور وبناء قنطرة وجسر وكفاية العلماء) والمتعلمين.

تجنيس، وبه يدخل طلبة العلم. فتح (والقضاة والعمال) ككتبة قضاة وشهود قسمة ورقباء سواحل (ورزق المقاتلة وذراريهم) أي ذراري من ذكر. مسكين.

واعتمده في البحر قائلا: وهل يعطون بعد موت آبائهم حالة الصغرة؟ لم أره، وإلى هنا تمت مصارف بيت المال ثلاثة، فهذا مصرف جزية وخراج،.......وفي الحاوي: المراد بالحافظ في حديث لحافظ القرآن مائتا دينار هو المفتي اليوم، ولا شئ لذمي في بيت المال إلا أن يهلك لضعفه فيعطيه ما يسد جوعته (ومن مات) من ذكر (في نصف الحول حرم من العطاء) لانه صلة فلا تملک إلا بالقبض، وأهل العطاء في زماننا القاضي والمفتي والمدرس. (الدر المختار/ج۴/ص۴۰۴)

قوله: فلا شئ له في العطاء ولأنه تبرع فلا يملک قبل القبض وأهله من يعمل لعامة المسلمين: کالقاضي والمدرس والمفتي وهذا في زماننا وفي الابتداء کان يعطي لمن له مزية حرمة في الإسلام مثل: أزواج النبي (صلى الله عليه وعلى آله وسلم ) وأولاد المهاجرين والأنصار أو کان عاجزا يحتاج إلى معونة (النافع الكبير/ج١/ص٣١٩ )

يادښت: دمال فئ مصرف لومړنی مورد عطاء وه، چې د(الف ) په تهجي حرف سره مو پرې څه بحث وکړ ،هغه دويم ځای چې مال فئ به پرې امام مصرفوي دادی ب: دجهاد اړوندوسله خريداري کول ،وقايوي توکي ،پوځي مورچولونه جوړول او دمسلمانانو له سيمو څخه دفاع ده ،ج: دهغو دولتي مامورينو مياشتينۍ تنخواګانې تاديه کول چې مسلمانان ورته اړتيا لري، چې هغه قاضيان ، محتسبين ،څوک چې قوانين نافذوي،مفتيان ،امامان ،مؤذنين ،مدرسين اوددوئ په څير نور هغه څوک دي ،چې خپل ځانونه يې دمسلمانانو دمصلحت لپاره فارغ کړي وي ،نو دوئ دبيت المال څخه دکفايې مستحق دي ،او داکفايه دزمانو ،سيمو ،احوالو او اسعارو په اعتبار سره تفاوت کوي.او دا رواتب يا اجرت دده د کار بدله من کل الوجوه نده ،بلکې دا کالاجرة ده، لکه قضاء چې طاعت يا عبادت دی ،نو پدې خو اجرت اخستل نا روا دي چې دالموسوعې دې لاندينې عبارت کې همدا سې نغښتل شوي:

ب - الأَسْلحَةُ وَالْمُعدّاتُ وَالتّحْصِينَاتُ وَتَكاليفُ الْجِهَاد وَالدّفَاعِ عَنْ أَوْطَانِ الْمُسْلمينَ.

ج - رَوَاتِبُ الْمُوَظَفِينَ الذينَ يَحْتَاجُ إِلَيْهِمُ الْمُسْلمُونَ فِي أمُورِهِمُ الْعَامّةِ ، مِنَ الْقُضَاةِ وَالْمُحْتَسِبِينَ ، وَمَنْ يُنَفّذُونَ الْحُدُودَ ، وَالْمُفْتِينَ وَالأئمّة وَالْمُؤَذّنينَ وَالْمُدَرّسِينَ ، وَنَحْوِهِمْ مِنْ كُلّ مَنْ فَرّغَ نَفْسَهُ لِمَصْلَحَة الْمُسْلمينَ ، فَيَسْتَحِقّ الْكِفَايَةَ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ لَهُ وَلِمَنْ يَعُولُهُ. وَيَخْتَلفُ ذَلكَ بِاخْتِلاف الأَعْصَارِ وَالْبُلْدَانِ لاخْتِلاف الأَحْوَالِ وَالأَسْعَارِ (٢ ).

وَلَيْسَتْ هَذِهِ الرّوَاتِبُ أَجْرَةً للمُوَظفِينَ منْ كُلّ وَجْهٍ ، بَلْ هِيَ كَالأُجْرَةِ ؛ لأَنّ الْقَضَاءَ وَنَحْوَهُ مِنَ الطّاعَاتِ لا يَجُوزُ أَخْذُ الأُجْرَةِ عَلَيْه أَصْلا (٣ ).

ثُمّ إِنْ سُمّيَ لِلمُوَظف مقْدَارٌ مَعْلُومٌ اسْتَحَقّهُ ، وَإِلا اسْتَحَقّ مَا يَجْرِي لأَمْثَالِه إِنْ كَانَ مِمّنْ لا يَعْمَلُ إِلا بِمُرَتّبٍ (٤ ). وَأَرْزَاقُ هَؤُلاء ، وَأَرْزَاقُ الْجُنْد إِنْ لَمْ تُوجَدْ فِي بَيْتِ الْمَالِ ، تَبْقَى دَيْنًا عَلَيْهِ ، وَوَجَبَ إِنْظَارُهُ ، كَالدّيُونِ مَعَ الإِعْسَارِ. بِخلاف سَائِرِ الْمَصَالِحِ

(١)شرح المنهاج وحاشية القليوبي ٢ / ٢١٣ و ٣ / ١٩١ ، ١٨٩ ، والمغني ٢ / ٤١٤.

(٢ )ابن عابدين ٣ / ٢٨٠ ، ٢٨١ ، والمغني ٢ / ٤١٧.

(٣ )ابن عابدين ٣ / ٢٨٢.

(۴) المنهاج وحاشية القليوبي ۳ / ۱۲۸و ۴ / ۲۵۵ ، ۲۵۲ .

فلا يَجِبُ القِيَامُ بِهَا إلا مَعَ القُدْرَةِ ، وَتَسْقُطُ بِعَدَمِهَا (الأحكام السلطانية لأبي يعلى ص ۲۳۲ ، وشرح المنهاج ۳ / ۲۹۴ ، ۲۹۲ ، وجواهر الإكليل ۲ / ۲۷۱ ، والخراج لأبي يوسف ص ۱۸۷ ، وروضة الطالبين للنووي ۱۱ / ۱۱۱ ، ۱۳۷ ، ۱۳۸ . . ) .

وَالرّاجِحُ عِنْدَ الحَنَفِيّة: أنّ مَنْ مَاتَ مِنْ أهْلِ العَطَاء ، كَالقَاضِي وَالمُفْتِي وَالمُدَرّسِ وَنَحْوِهِمْ قَبْلَ انْتِهَاءِ العَامِ ، يُعْطَى حِصّتَهُ مِنَ العَامِ ، أَمّا مَنْ مَاتَ فِي آخِرِهِ أوْ بَعْدَ تَمَامِهِ فَإنّهُ يَجِبُ الإعْطَاءُ إلى وَارِثِه (الدر ورد المحتار ۳ / ۲۸۲ . ) .

د:دمال فئ دمصرف بل ځای دادی چې مسلمانو فقیرانو په مسایلو ولګول شي ،لکه دتش لاسي ،لقیط ،غریبو بندیانو چې خوک او څه نلري، نو بیت المال به یې نفقه ،جامه ،درملنه ،او دمړو تکفین او تجهیز کوي ،همداسې که دجنایت دیت پرې واجب شي، هم به یې ورکوي ،هـ: پر اهل ذمه وباندې له بیت مال الفئ څخه لګښت کول اګرکه حق یې هم پکې نشته ،خو د( اهل حیره ) سره( حضرت خالد بن ولید ﷺ)تعامل داسې وو ،چې دا ړتیا او لوږې پر وخت پرې مصرف جواز پیدا کوي ،و:بل کیدلای شي چې دبیت المال ددې خونې څخه دمسلمانانو زندانیان راخلاص کړي او که فدیه یې ضرورت وي ،دمال فئ څخه دې پرې مصرف وکړي ،ٓدحضرت عمر ﷺ دا قول چې دمسلمانانو بندیان به د بیت المال په پیسو خلاصوي ،ددې جزئي لپاره ښه دلیل دی ، ز: دمسلمانانو د سیمو عمومي تعمیراتي کارونو لپاره هم لدې بیت یا خونې څخه مصارف کیدلای شي ،لکه دجوماتونو تعمیر ،دپلونو او سرکونو احیاء یا مرمت ،دنهرونو جوړول اداسې نور.....ح:دحکومتي یا امارتي غړو دتیروتنو ضمان یا تاوان ورکول ،داسې چې کله کوم دولتي چارواکی یا قاضي چې کله دخپل رسمي کار پروخت داسې تیروتنه وکړي ،چې له حده پکې تیری وکړي، یعنې درسمي کار په دوران کې دچا ځان ،دبدن غړی او یا مال تلف کړي ،لکه دتعزیرپر وخت دومره تجاوز وکړي چې هغه شخص ترې ووژل شي ،نو ضمان به یې دبیت المال لدې څلورمې خونې مال فئ څخه تأدیه کیږي.

هو داحنافو ،مالکیانو ،اصح قول ،دحنابلو او په اظهر قول دشوافعو په اساس که چیرته امام یا کوم چارواکې یا مامور داسې کوم کارکې تیروتنه وکړه ، چې مکلفیت یې خاص دده دشان سره تعلق درلود ،نو ضمان به یې دده په عاقله وو ، یا تنها پرده وي ، ط:دمال فئ بیت یا خونه به دهغو حقوق برداشت کوي ،چې شریعت یې خاوندانو ته ټاکلي وي ،او دشریعت قواعد داسې وي چې په تنهایي به یې کوم معین کس نه تحمل کوي ،لکه کوم کس چې دبیت الله په طواف ،یاعمومي لاره یا غټې جوماتې کې ووژل شي او قاتل یې نا معلوم وي ،نو ددې دیت به په بیت المال کې وي،رسول الله ﷺ دعبد الله بن سهل انصاري دیت هغه مهال ورکړ ،چې دا خیبرکې ووژل شو او قاتل یې نا معلوم و ،او انصارو ود قسامت له سوګند څخه انکار وکړ ،اوهم یې دیهودو سوګندونه ونه منل، نو رسول

الله ﷺ یې لدې امله دیت ورکړ، چې وینه یې هدر لاړه نشي او همداسې دلقطې د تعریف اجرت......
چې د موسوعې دې عبارت کې راغې:

د - القِيَامُ بِشُئُونِ فُقَرَاءِ المُسْلِمِينَ مِنَ العَجَزَةِ وَاللُّقَطَاءِ وَالمَسَاجِينِ الفُقَرَاءِ ، الذِينَ لَيْسَ لَهُمْ مَا يُنْفَقُ عَلَيْهِمْ مِنْهُ ، وَلاَ أَقَارِبَ تَلْزَمُهُمْ نَفَقَتُهُمْ ، فَيَتَحَمَّلُ بَيْتُ المَالِ نَفَقَاتِهِمْ وَكِسْوَتَهُمْ وَمَا يُصْلِحُهُمْ مِنْ دَوَاءٍ وَأُجْرَةِ عِلاَجٍ وَتَجْهِيزِ مَيِّتٍ ، وَكَذَا دِيَةُ جِنَايَةِ مَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ عَاقِلَةٌ مِنَ المُسْلِمِينَ ، أَوْ كَانَ لَهُ عَاقِلَةٌ فَعَجَزُوا عَنِ الكُلِّ أَوِ البَعْضِ ، فَإِنَّ بَيْتَ المَالِ يَتَحَمَّلُ بَاقِي الدِّيَةِ ، وَلاَ تُعْقَلُ عَنْ كَافِرٍ . وَنَبَّهَ بَعْضُ الشَّافِعِيَّةِ إِلَى أَنَّ إِقْرَارَ الجَانِي لاَ يُقْبَلُ عَلَى بَيْتِ المَالِ ، كَمَا لاَ يُقْبَلُ عَلَى العَاقِلَةِ.......(ابن عابدين ۵ / ۴۱۳ ، وجواهر الإكليل ۲ / ۲۷۱ ، والقليوبي ۲ / ۲۹۲ ، و ۳ / ۱۲۵ ، ۲۹۴ ــ ۲۹۲ ، و ۴ / ۲۱۱ ، ۲۱۴ ، والمقنع ۲ / ۳۰۳ ، وكشاف القناع ۱ / ۲۳۴ ، وأسنى المطالب ۴ / ۸۳-۸۲ ).

ز - المَصَالِحُ العَامَّةُ لِبُلْدَانِ المُسْلِمِينَ ، مِنْ إِنْشَاءِ المَسَاجِدِ وَالطُّرُقِ وَالجُسُورِ وَالقَنَاطِرِ وَالأَنْهَارِ وَالمَدَارِسِ وَنَحْوِ ذَلِكَ ، وَإِصْلاَحِ مَا تَلَفَ مِنْهَا (۲).

ح - ضَمَانُ مَا يَتْلَفُ بِأَخْطَاءِ أَعْضَاءِ الإِدَارَةِ الحُكُومِيَّةِ:

مِنْ ذَلِكَ أَخْطَاءُ وَلِيِّ الأَمْرِ وَالقَاضِي وَنَحْوِهِمْ مِنْ سَائِرِ مَنْ يَقُومُ بِالأَعْمَالِ العَامَّةِ ، إِذَا أَخْطَئُوا فِي عَمَلِهِمُ الذِي كُلِّفُوا بِهِ ، فَتَلَفَ بِذَلِكَ نَفْسٌ أَوْ عُضْوٌ أَوْ مَالٌ ، كَدِيَةِ مَنْ مَاتَ بِالتَّجَاوُزِ فِي التَّعْزِيرِ ، فَحَيْثُ وَجَبَ ضَمَانُ ذَلِكَ يَضْمَنُ بَيْتُ المَالِ..................

---

(۲) المغني ۲ / ۴۱۷ ، وشرح المنهاج ۳ / ۹۵ .

فَهُوَ أَنَّ الضَّمَانَ عَلَى عَاقِلَتِهِ. أَمَّا ضَمَانُ العَمْدِ فَيَتَحَمَّلُهُ فَاعِلُهُ اتِّفَاقًا (ابن عابدين ۳ / ۱۹۰ ، والدسوقي ۴ / ۳۵۵ ، وروضة الطالبين ۱۱ / ۳۰۸ ، والمغني ۸ / ۳۱۲ ، ۳۲۸ ).

ط - تَحَمُّلُ الحُقُوقِ التِي أَقَرَّهَا الشَّرْعُ لأَصْحَابِهَا ، وَاقْتَضَتْ قَوَاعِدُ الشَّرْعِ أَنْ لاَ يَحْمِلَهَا أَحَدٌ مُعَيَّنٌ:

وَمِنْ أَمْثِلَةِ ذَلِكَ مَا لَوْ قُتِلَ شَخْصٌ فِي زِحَامِ طَوَافٍ أَوْ مَسْجِدٍ عَامٍّ أَوِ الطَّرِيقِ الأَعْظَمِ ، وَلَمْ يُعْرَفْ قَاتِلُهُ ، فَتَكُونُ دِيَتُهُ فِي بَيْتِ المَالِ لِقَوْلِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: لاَ يُطَلُّ فِي الإِسْلاَمِ دَمٌ (۱) ، وَقَدْ " تَحَمَّلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِيَةَ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَهْلٍ الأَنْصَارِيِّ حِينَ قُتِلَ فِي خَيْبَرَ ، لَمَّا لَمْ يُعْرَفْ قَاتِلُهُ ، وَأَبَى الأَنْصَارُ أَنْ يَحْلِفُوا القَسَامَةَ ، وَلَمْ يَقْبَلُوا أَيْمَانَ اليَهُودِ ، فَوَدَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِهِ كَرَاهِيَةَ أَنْ يُبْطِلَ دَمَهُ "أخرجه البخاري ومسلم ( ۳ / ۱۲۹۲ ـ ط الحلبي ) . وانظر المغني ۸ / ۷۸ ، والدر المختار وحاشيته ۵ / ۴۰۲ .

وَمِنْ ذَلِكَ أَيْضًا أُجْرَةُ تَعْرِيفِ اللُّقَطَةِ ، فَلِلْقَاضِي أَنْ يُرَتِّبَ أُجْرَةَ تَعْرِيفِهَا مِنْ بَيْتِ المَالِ ، عَلَى أَنْ تَكُونَ قَرْضًا عَلَى صَاحِبِهَا (۱) نور بیا .......................

ذبیح الله مجاهد له افغان اسلامي اژانس سره په مرکه کې :

## د استشهادي عملیاتو لپاره د ځوانانو لیوالتیا او په دین قربانۍ ته تیاریدنه موږ ته ډاډ راکوي چې افغانستان د ز مرو کور دی او ان شاءالله لا هم پاتې جګړې ته به په خورا ښه پوهاوي سره آماده یو او ډیره ښه نوي او ځوانه انرژي ور ته لرو.

**السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته**

**داچې دوه زره او دیارلسم کال اهمیت درلود، او دوه زره او څوارلسم کال تر هغې هم زیات مهم دی، افغان اسلامي اژانس هیله لري چې تاسې ښاغلي به په ۲۰۱۳م کې د رامنځته شویو، او په ۲۰۱۴م کې د متوقع پېښو او حالاتو په اړه یو شمیر پوښتنو ته ځوابونه وواياست.**

**۱–په ۲۰۱۳م کال کې د طالبانو لپاره تر ټولو ستره لاسته راوړنه د قطر هیواد په پلازمېنه دوحه کې د یو دفتر پرانیستل و، خو دغه دفتر د یو لړ لانجو ښکار شو، ایا ویلای شئ، چې د دې دفتر له لارې د مذاکراتو بهیر د نه پرمختګ بلکې په ټپه د درېدو علتونه څه وو؟**

**ځواب : تر هغه ځایه چې د اسلامي امارت پورې اړه لري، موږ د جګړې نه مخکې هم په مکرر ډول امریکایانو ته ویلي چې جګړېزه پالیسۍ پرېږدي او د مسائلو معقولو حل لارو ته غاړه کیږدي، همدا راز زموږ د سیاسي دفتر پرانیسته هم له بهرنیو جهتونو سره د رسمي تماسونو د درلودلو، د افغانستان اشغال پای ته رسولو ته د خبرو د لارې دحل لارې د موندلو همدا راز د هغو تشویشونو د رفعې لپاره پرانستل شو چې د نړۍ ځیني هیوادونه یې د اسلامي امارت په اړه لري، ولي ومو لیدل چې دداخلي اوخارجي دښمن له لوري په دې برخه کې غیر معقول دریځونه ښکاره او ددې پروسې ددرولو هڅې وشوې، په لوی سر کې د دغې پروسې دسوړوالي لوی علت د امریکایانو ناسمه پالیسي ،د جګړې غوښتنې په دریځ ټینګاراود دوی د داخلي ملګروشخي ګټي او نا سنجیده اقدامات دي چې هڅه کوي نورو مثبوتو لارو ته خنډونه ایجاد کړي.**

۲-له ډېرو کلونو راهیسې د کابل اداري چارواکي وايي چې د طالبانو يو شمير مشران ورسره په اړيکه کې دي، خو په ۲۰۱۳م کې دغسې څرګندونې زياتې شوې، حقايق څه دي؟

ځواب : د کابل اداري لپاره ماسوا له دغسې خوشبينانه پروپاګند نه بل څه نه دي پاتې ، هغوي تل د داسې مسائلو په اړه ناسم تبليغات کړي، آوازې يې خپرې کړي او د تشويش اچولو هڅه يې کړې، د هغه دوکاندار نه راښيولې چې امريکايان او د کابل اداره يې تير ايستل او ښې ډيرې پيسې يې ځينې يوړې، د دوی تر وروستۍ ادعا پورې، ټولې خبرې يې په دې اړه دروغ دي، د دې خبرې د ثبوت لپاره دا کافي ده چې دوی په دا دومره موده او ادعا ګانو کې يو مثال هم وړاندې نشو کړای چې د اسلامي امارت کوم مشر دې له دوی سره اړيکه کړې وي، نتيجه دې پرې مرتبه شوې وي او يا دې اقلا نوم اخيستل شوی وي.

۳-تاسې ولې د حامد کرزي په مشرۍ د افغانستان د اوسني حکومت سره خبرو ته چمتو نه ياست، په داسې حال کې چې دغه حکومت ټولې نړۍ په رسميت پيژندلی دی؟

ځواب: د کرزي اداره يوه بې واکه او بلواکه اداره ده، چې د خپلې ارادې په اساس يا دخلکو د هيلو په اساس نه ده رامنځ ته شوې بلکې لکه د پخواني کارمل رژيم د بهرني يرغل د جزئياتو د تکميل په منظور رامينځته شوې، کړنې او اجرآت يې د امريکايانو تر اجازې پورې موقوفه دي، کوم څه چې امريکايان ونه غواړي د کابل اداره يې د کولو واک او صلاحيت نه لري، لهذا اسلامي امارت نه غواړي له بې صلاحيته جهتونو سره د خبرو په نامه وخت ضايع کړي، او يا اقلا جهادي فرصتونه وځنډوي، پاته شوه د نړۍ د رسميت پيژندنې مسئله هغه کومه معياري او د اعتبار وړ مسئله نه ده، ځکه که تاسو فکر کړی وي د پخوانيو کمونستانو رژيمونه له تر کي نه رانيولې تر نجيبه پورې ټول يې د نړۍ دډيرو هيوادونو لخوا په رسميت منل شوي وو، خو د افغان ولس لخوا رد شول او ورسره په مبارزه ټينګار وشو، د نړۍ د رسميت پيژندلو مسئله د نړۍ د هيوادونو تر ګټو پورې اړه لري نه د افغانستان د سرنوشت يا دلته د خلکو د رضايت يا عدم رضايت پورې.

۴-د سولې د عالي شورى سره خبرو ته چمتو نه ياست، او د بين الافغاني مذاکراتو او تفاهم لپاره بله لار ايجاد شوې نه ده، تاسې بله کومه طرحه او وړانديز لرئ؟ د افغانستان د کشالې حل په څه کې وينئ؟

ځواب : د افغانستان د مسئلې دحل کيلي د بهرني اشغال هر ډول پای موندل دي، کله چې دلته اشغالګر شتون ولري، افغانان د اشغالګرو د شړلو نه ماسوا بله کومه مهمه قضيه نه لري، کله چې يرغلګر ماتيږي بيا افغان ولس د دې وړ تيا لري چې د خپل راتلونکي لپاره لار او مسير وټاکي ،ولي د يرغلګرو شړل لومړۍ او له ټولو نه مهمه مسئله ده او دهغوی په موجوديت کې نورې طرحې وړاندې کول او خبرې پرې کول هسې دوخت ضايع کيدل او بې نتيجې اقدامات دي .

۵-په تېر يو کال کې د سياست په ميدان کې خپله تر ټولو ستره لاسته راوړنه څه بولئ؟ او څه فکر کوئ، چې د اسلامي امارت سياسي دريځ په کومو دلايلو بريالی دی؟

ځواب: د تیر یو کال په جریان کې موږ د سیاست په میدان کې ډیر څه درلودل، دې ته په کتو چې موږ د سیاسي فعالیت په عرصه کې له بې شمیره محدودیتونو، ستونزو او امنیتي مسائلو سره مخ وو، د تیر یوه کال په موده کې موږ ونوانیدو چې د سیاسي دفتر د لارې دجاپان، فرانسې او ایران هیوادونو ته رسمي استازې ولیږو، هلته د اسلامي امارت دریځ څرګند کړو او نړیوالو ته د اسلامي امارت د اصلي تصویر په اړه چې د یرغلګرو لخوا تـل معکوس ښودل کیـده، ریښتوني معلومات وړاندې کړو، یادو ټولو هیوادونو ته زموږ سفرونه له خورا الاسته راوړنو او پر مختګونو ډک وو، له نړیوالو سره د اړیکو سلسله پیل شوه، له ډیرو نورو هیوادونو سره هم دا تلوسه پیدا شوه چې له موږ سره اړیکې ولري، له دې نه علاوه اسلامي امارت په خپل پیاوړي او پوخ دریځ باندې په ټینګار سره دوست او دښمن ته دا ثابته کړه چې موږ له خپلې بر حقې داعیې څخه تیر نه یو او داچې زموږ اولس ته دخپلو حقه حقوقو له ور کړې بغیر بلـه هیڅ نسخه ددې درد دوا کیدلی نشي، مهمه دا چې داسلامي امارت دسیاسي دفتر با تجربه اوځیر کوفعالانواو داسلامي امارت نورو مسئو لینو په ډیر مهارت سره دمکار دښمن له ډول ډول دسیسو او فریب کاریو سره ،داسې مدبرانه مقابله او چلند کړی چې دخپلو مجاهدینو ،اولس اوهر هغه چا چې له اسلام سره مینه لري، زړونه یې سا تلي او ددښمن ډول ډول ناو لې پلانونه یې خنثی کړي.

۶-د تېرو اوو کلونو په نسبت په ۲۰۱۳م کال کې په افغانستان کې بهرنیانو خپل ډېر کم تلفات اعلان کړي، څه فکر کوئ، چې دا شمېره به سمه وي؟ ستاسې د معلوماتو تر مخې په دې کال کې به څو تنو بهرنیانو ته مر ګ ژوبله رسېدلې وي، او مالي خسارات به یې څومره وي؟

ځواب: لومړی خو به تاسو ته معلومه وي ،چې یرغلګر هیوادونه د خپلو پوځي قوانینو له مخې د خپلو عسکرو تلفات نه مني او یا ډیر کم څرګندوي، ترڅو یې د عسکرو په روحیه او د ولسونو په ذهنیت منفي اغیز ونه کړي، داسې کول دهغو د دروغژن سیاست یوه برخه ده، که واقعیتونو ته راشو سږ کال هم لکه د تیـرو کلونو پـه څیـر د بهرنیو او کورنیو عسکرو په وړاندې خورا درانه او ګڼ شمیر بریدونه تر سره شول، د خالد بن ولید د عملیـاتو لـه پیـل نـه تـر اوسـه پـورې زموږ لخوا په زرګونه بریدونه تر سره شوي، نو که دا په دښمن نه وي تر سره شوي بیا یې هدف څه وو؟ که پـه دښـمن تر سره شوي وي نو بیا تلفات ولې ونه لري؟ دا چې ددښمن چور لکې را ولویږي او داور خوراک شي نو امریکایـان یـې بیږنۍ ناسته وبولي، سوال دادی چې دا بیړنۍ ناستې یې په بل هیواد او خپله امریکا کې ولې نه کیږي ،چې یوا ځې پـه افغانستان کې وي؟ او دا چې او سپینه داور خوراک شي او انسانان پکې روغ رمټ پا ته شي یا دا چې دسلو کسو په مینځ کې یوازې یو افغاني تر جمان مړ شي ،دا هغه پوښتنې دي چې بهرنیان ورته واقعي او ریښتوني ځواب نه لـري، خو یوه خبره باید په صراحت وکړو چې هو سږ کال د بهرنې دښمن تلفات له تیرو کلونو سره توپیر لري او هغه څو علتونـه لـري چې په موږ پورې نه، بلکې د دښمن تر ویرې او ډار پورې اړه لري، چې ځانونه یې له سختو بندیزونو سره مخ کړي:

۱ـ سږ کال بهرنی دښمن د هیواد له ډیرو پراخو ساحوڅخه خپل عسکر پـه شـاګرځ سره د ولایـاتو مراکزو او خپلو لویو اډوته را انتقال کړل، چې په دې سره مجاهدینو ته لویې سیمې په واک کې ورغلې او سیمې د دښمن له وجود څخه پاکې شوې اوپه عین حال کې په بهرنې دښمن د بریدونو موارد هم کم شول.

۲ـ سږ کال بهرنیو عسکرو په ځان باندې د ګرځیدا کلک بندیزونه لګولي وو، د هغو تحرکات ډیر کم شوي وو، بې له اشد ضرورت ته له خپلو غارونو نه راوتل، او علت یې هم له مجاهدینو نه ځان ژغورل او ساتل وو، زموږ مجاهدینو په کراتو داسې عملیات ترسره کړل چې د دښمن د بهر راوتلو بهانه برابره کړي خو دښمن دومره تر ویرې او ترهې لاندې وو چې په ډیره سختۍ سره یې هم له خپلو مراکزونه بهر راتګ ته زړه نه ښه کاوه.

۳ـ سږ کال د بهرنیو لخوا د ځان په ځای د کابل اداري د عسکرو او پولیسو مرګ ته ور کولو پالیسۍ هم د دې سبب شوې چې د کابل د اداري د عسکرو او پولیسو مرګ ژوبله له حده واوړي او په عوض کې یې د بهرنیو عسکرو ژوند چې هغوی ته مهم دي خوندي شي، متأسفانه چې په دې ټکې بهرني او کورني دښمن په خپلو خپلو کلنیو راپورونو کې اعتراف هم کړي وو.

پور ته علتونو د بهرنیو عسکرو د روزمره تلفاتو شمیر لږ کم کړی خو بیا یې هم مجاهدینو په وړاندې داسې عملیات اجرا کړل چې په خپلو مراکزو کې دننه یې هم درانه تلفات ولیدل، وخت په وخت یې په بیسونو توغندویزو ګوزارونو، په مهمو ځایونو یې استشهادي بریدونو، دالوتکو ویشتلو، د راوتو په صورت کې د زغروالو ټانګونو منفجر کولو او په ګڼ شمیر کې ور ته مرګ ژوبلې اړولو بیا هم دهغو د تلفاتو شمیر تر یوه حده ساتلی چې دا تیره عیسوي میاشت، دوی پخپله د ځان لپاره تر ټولو خونړۍ میاشت وبلله او دا زموږ دخبرې ثبوت دی.

۷–افغان حکومت کله وایي چې د هغوی د امنیتي ځواکونو مرګ ژوبله کمه شوې او کله بیا وایي چې زیاته شوې ده، تاسې په دې اړه څه نظر لرئ؟

ځواب: په واقعیت کې د امریکایانو د تلفاتو او دهغو دمرګ ژوبلې ځای ته سږ کال په ټول هیواد کې د کابل اداري عسکر او پولیس ورټیل وهل شول، چې متأسفانه د څو ډالرو لپاره یې خپل ژوند هم له لاسه ورکړ او خپل آخرت یې هم د کفارو د ګټو قرباني کړ، داچې د سږ کال په جریان کې د کابل اداري د خپلو تلفاتو په اړه ضد اونقیض خبرې کولې او د کال په پای کې یې په خپل راپور کې ترې له سره یادونه ونه کړه، دا په خپله د درنو تلفاتو غمازي کوي چې دوي یې بیا د پټولو په هڅه بوخت دي، د دوي د خبرو د ضد او نقیضوالي وجه داهم ده چې د دوي معلومات ور کونکي چې له رسنیو سره په تماس کې کیږي په خپلو کې هماهنګي نه لري، یويې یوڅه او بل یې بل څه وایي خو کوم شی چې روښانه دي هغه دادي چې د دوي د کورنیو چارو وزارت منلې وه چې د خالد بن ولید د عملیاتو په لومړیو دریو میاشتو کې له دریو زرونه ډیر یې تنها پولیس وژل شوي، عسکر، اربکي او د استخباراتو کارمندان خو یې پریږده، ممکن موږ د خالد بن ولید د عملیاتو د پای په وخت کې د دښمن د تلفاتو په اړه ورستي او دقیق ارقام خپاره کړو چې ورسره به هر څه روښانه شي.

۸–دا کال د بدر الدین حقاني، ملا سنګین، شیخ دوست محمد، حاجي دوران صافي، او نصیر الدین حقاني په څېر د طالبانو مهم قوماندانان ووژل شول، ایا دې پیښو د طالبانو پر نظامي فعالیتونو اغیز کړی؟

ځواب: كه تاسو د جهادي بهيرونو تاريخ ته ور وګرځئ نو در ته ښكاره به شي چې د اشخاصو حتى مهمو كسانو قرباني ور كول په جهادي صف كې د مجاهدينو په روحياتو كې نوي ساه پو كي، په هغو كې د انتقام او بدل اخيستلو جذبه پنځوي، او له خپلو آرمانونه سره يې وفاداري ډيروي، موږ ليدلي كله چې كوم مسئول كس شهيد شوي، په صفوفو كې د جهادي آرمانونو تلـه لا درنـه بلل شوی اودجهاد د نتيجو لاسته راوړلو تـه د لويو هستيو د قرباني د مقتضي پـه ستر ګه كتل شوي، بل اسلامي امارت له هغه لومړي پيل نه تر اوسه د مشرانو د شهادت له قضي سره آشنا ده، ور تـه آمادګي لري او هيڅ راز مشكل نشي ور تـه پيښولای، داسمه ده چې د شهيدانو د مسئوليت پـه نيـږدې دايـره كې بـه د مسئول د شهادت په وجه لږ سكتګي راځي خو ډير ژر بير ته جبران كيږي او وړ كسان يې ځای نيسي، زموږ پـه صـفوفو كې د تشكيلاتو ښه همداسي ده چې د هر مسئول دشهادت پيش بيني شوې وي او په خپل صف كې ور تـه دوهم او حتى دريـم كس پـه نظر كې نيـول شوي وي، چې لـه دې كـار سره د مشرانو شهادت پـه جهادي كارونو هيڅ منفي اغيزنـه پريباسي.

۹–ايا په همدې كال كې د طالبانو د ځاني تلفاتو دقيقه شمېره څرګنده ده؟ كه نه وي، تخميني مرګ ژوبلـه بـه يې څومره وي؟

ځواب: دجهاد په بهير كې قرباني ور كول د هر مجاهد مهم آرمان وي، زموږ هر مجاهد سنګر ته د شهادت په تلوسه وردانګي او په دې لاره كې هر زيان خپل برى او كاميابي بولي، طبعا دا ډيره پراخه جګړه ده او درنو قربانيو ته په كې ضرورت ده، خو لكه څرنګه چې اهداف خوارده دي تلفات او قرباني يې هم لذت لري، چې موږ پرې افتخار كوو، ولي بيا هم دسږ كال په جهادي عملياتو كې تر اوسه زموږ تلفات د دښمن په نسبت خورا لږدي، او هغه څو علتونه لري:

الف: زموږ جګړه چريكي جګړه ده چې په طبعي ډول دغه راز عمليات تلفات خورا كم لري.

ب: زموږ عمليات اكثره د كم شمير فدايانو په مټ ترسره كيږي چې د ښمن ته څو برابره زيات ځاني او مـالي زيـان ور اړوي.

ج: زموږ د عملياتو مهمه برخه د كنټرول‌ليدونكو ماينونو استعمال ده چې په دې سره مجاهدين اصلا تلفات نـه لـري اود دښمن لپاره له ټولو وسيلونه ډيره دتلفاتو اړونكي ده.

د: زموږ كوم كمينونه چې د دښمن په وړاندي اجرا كيږي هغه په خورا آمادګۍ، د عراضي پـه برسي او كتنې سره تـر سره كيږي، په عين حال كې دښمن غافل ګيره كيږي چې نشي كولای د ور تـه برابرې شوی وسلي لـه ميـل نـه ځـان بـچ كړي مګر ډير كم شمير يې.

ه: زموږ د عملياتو بله عمده برخه د دښمن پـه مراكزو او مهمو ځـايونو د توغنديو ويشتل دي چې لـه لازمې فاصلې نـه ويشتل كيږي او مجاهدين په امن كې ځان له سيمې نه ايستلی شي او دښمن ته كاري زيان هم اړوي.

ز: زموږ بله حربه د دښمن د الوتكو ويشتل او نښه كول دي چې الحمدلله مجاهدينو ته هيڅ زيان نه لري.

د پور ته تاکتیکو په اجرا سره چې زموږ د جهاد عمده برخې تشکیلوي ښکاره خبره ده چې موږ ته یې تلفات نشته یا ډیر کم دي خو دښمن ته درانه تلفات اوړي چې په دې توګه ویلای شو چې د مجاهدینو تلفات د دښمن په نسبت خورا کم دي ، بیا هم د خپلو تلفاتو دقیق ارقام به موږ د خالدبن ولید دعملیاتو په پای کې ان شاءالله له تاسو سره شریک کړو.

۱۰-دا کال طالبانو د هیواد په یو شمیر سیمو کې سختې جګړې وکړې، لکه د ننګرهار د شیرزادو او خوګیاڼو، د بدخشان د وردوج ، جرم او کران و منجان، د کونړ د چپې درې، لوګر د ازرې، هلمند په بیلا بیلو سیمو او یو شمیر شمالي ولایتونو کې، د دې جګړو ځرګندې نتیجې څه دي؟

ځواب : که تاسو ته معلومه وي په دغو ټولوسیمو کې د دښمن لخوا د مجاهدینو په ضد تش به نامه د علمیانولوی، لوی اعلانونه شوي چې بیا به مجاهدینو د ولسونو په ملاتړ ورسره مقاومت پیل کړ، خو په ټولو محاذونو کې دښمن له غټې قوي سره ، له هوایي مرستې سره سره، د سلګونو نظامي وسائطو په بدرګه پر مختګ ته نه ده پریښودل شوی، تاسو شاهدان وي چې د یادو عملیاتو په پیل او جریان کې به دښمن ادعا وکړه چې دوي سیمې له مجاهدینونه نیولې دي او مجاهدین یې له یادو سیمونه ایستلي دي، خو په واقعیت کې به دښمن هلته هیڅ پر مختګ نه درلود، بلکې برعکس به یې تلفات ولیدل، وخت او مال به یې ضایع کړ خو هیڅ به په لاس ورنغلل،د ننګرهار د شیزادو تلفات، د ازرې په ولسوالی کې د برې په دروغو ادعا چې بیر ته د ولسي خلکو لخواهم ردشوه، د بدخشان په وردوج، جرم او کران ومنجان کې د دښمن درانه تلفات او هلته تر اوسه دمجاهدینو فعال حضور ، د هلمند په مختلفو سیمو کې دښمن ته د سر او مال درانه زیانونه او ناکامی، هغه څه دي چې په یادو ټولو جګړو کې یې دښمن ناکامه کړي او هیڅ یې لاسته نه دي ور وړي، د کنړ په چپه دره کې د څو ورځو درنو تلفاتو په ګاللو سره دښمن ایله وتوانید چې یوځل په عمومي سړ ک تیر شي او د نورستان مرکز ته ځان ورسوي چې په هغه تللې لاره بیر ته نشي راګرځیدای، سره له دې چې هلته د ژمي په راتګ او ډیرو واورو سره د جګړې دوام هم ډیر ستونزمن وو، خو بیا هم مجاهدین توانیدلي چې دښمن ته هم تلفات واړوي او هم یې د پر مختګ مخه ونیسي چې دا پخپله زموږ لاسته راوړنه او د دښمن ناکامي ده.

۱۱-په ۲۰۱۳م کال کې د طالبانو ستره نظامي بریا څه ده؟

ځواب: د تیر کال زموږ ستره بریا داده چې د دښمن په اعتراف موږ د ټولو کلونو په نسبت په دښمن ډیر بریدونه اجرا کړل،او ګډ دښمن ته مو د پخوا په نسبت ډیر درانه تلفات واړول، همدا راز ستره بریا داده چې دا اوس د امریکایانو په یو استخباراتي خاص راپور کې ور ته اشاره شوي چې مجاهدین له پخوانه ډیر قوي شوي او د دښمنانو له لاسه به هر هغه څه وباسي چې دوي یې د څو کاله د لاسته وړنو دعوه کوله، همدا رنګه دا زموږ لوی بری وو چې د هیواد په ډیرو پراخو سیمو کې مو د مجاهدینو حضور او موجودیت پراخ کړ، ډیر خلک اوس د اسلامي امارت د عملي نفوذ لاندې سیمو کې ژوند کوي، د ولسوالیو او ولایاتو صرف مراکز د پوستو په شکل د دښمن په واک کې دي نور اطراف له خپل پراخ طول او عرض سره د مجاهدینو په واک کې دي او یوبل بری داچې سږ کال موږ د ارشاد او دعوت د کمیسیون د فعالیت په مټ په زرهاوو غولیدلي افغانان د دښمن له صفه را ویستل او عادي ژوند ته مو راوګرځول.

۱۲-د ملکي وګړو مرګ ژوبله تر ډېره بريده پر (مخالفينو) او که ووايو مستقيماً پر طالبانو اوړي، تاسې د دې ادعاوو د حقانيت په اړه څه واياست؟

ځواب: موږ پخپل وخت کې هم دغې موضوع ته ځواب ويلی، لومړی خو زموږ اوسنی جهاد په نړۍ کې هغه لومړی لويه او پراخه جګړه ده چې ملکي خلکو ته تلفات پـه کې کم اوړي، دا اوس تاسو پـه سوريه کې حالات وګورئ، پـه عراق کې وګورئ او نورو پخوانيو جګړو ته سر ورښکاره کړئ، د شوروي اتحاد په وړاندې زموږ پخوانی جهاد وګورئ، دهغو ټولو پـه نسبت زموږ د اوسني جهاد ملکي تلفات خورا لږدي، خو بيا هم ملکي تلفات په هيڅ ډول هم دمنلو نه دي ، هغه راپورونه چې د ملکي خلکو د مرګ ژوبلې په اړه خپرېږي د هغو اصلي هدف د ملکي خلکو له ژوند سره دلچسپي نه ده، بلکې هڅـه کوي چې د مجاهدينو په ضد ذهنيتونه خراب کړي، زموږ په وړاندې له امريکايانو سره د تبليغاتو د جوال خوله ونيسي، او صرف تبليغاتي ګټه ترې واخلي، ځکه که د ملګرو ملتونو سازمان يا نور بشري په نامه سازمانونه دې تـه ليوالـه واى چې د ملکي خلکو د مرګ ژوبلې د مخنيوي لپاره جدي ګامونـه پورتـه شي، موږ څو ځلـه غوښـتنه وکړه چې راځي پـه دې اړه بې پـرې تحقيقات ترسره کړو، په هغو کې دې د ملګرو ملتو سازمان، د امريکايانو او زموږ استازي ونډه ولري، تر څو خلکو ته واقعا ملکي تلفات ښکاره کړو او د ريښتوني مخنيوي په اړه يې لازم او جدي ګامونـه پورتـه کړو ، خو تاسو شاهدان وئ چې پـه اصطلاح دغه بشرپالان؟!! دې ته حاضر نشول چې دملکي تلفاتو په اړه واقعيتونه بربنډ شي، اوس چې تر کوم ځايه په موږ پورې اړه لري، د افغانسـتان ملکی خلک زموږ خلک دي نه دامريکايـانو، زموږ هيوادوال دي نـه دي امريکايـانو، زموږ مسلمانان دي نه د امريکايانو په دين، نو دغو ټولو مشتر کاتو ته په کتو او دې ته په کتو چې زموږ مبارزه هم د همدغو ملکي خلکو او ولس د نجات لپاره جريان لري، موږ ډير ليواله يو چې بايد هيڅ ملکي زيان ونه ليدل شي، ټولو مجاهدينو ته په دې باره کې لازمې لارښونې شوې دي او لاهم په دې کار روان ده چې د ملکي خلکو له ژوند سره خورا احتيـاط خپـل کـړل شي، کوم تلفات چې ملکي خلکو ته په امريکايي چاپو، بمبارونو، د اربکيانو په وحشتونو، او دپوليسو پـه هرخوا ډزو کې اوړي د مجاهدينو لخوا نه دي اوښـتي، پـه دې توګه د ملکي تلفـاتو ډيـری شـميره دبهرنيواوداخلي عسکرو پـه بې احتيـاطيو او يـا قصدي وحشتونو پورې اړه لري نه د مجاهدينو پورې.

۱۳-د طالبانو لخوا په مختلف النوع چاودنو کې ملکي وګړو ته د مرګ ژوبلې د مخنيوي په موخه مو څه تدابير نيولي؟ او هغه چاودنې چې طالبان يې نه کوي، څوک به يې کوي؟

ځواب: دا هسې يوه بهانه ده چې د طالبانو لخوا په چاودنو کې ملکي تلفات ډير اوړي، تاسو فکر وکړئ يوڅوک چې پـه ټنونو وزن باروت په کليو، هستوګن ځايونو، مساجدو، مدارسو، ودونو او غونډو اوروي په هغو کې به ملکي تلفات ډيـر وي او که د څو کيلوګرامه ماين په انفجار کې چې هغه هم د دښمن په نظامي موټر د ريموټ په وسيله انفجار کيږي؟

البته يو هغه چاودنې دي چې علت يې نشي معلوم، هغه مايونونه چې د ودونو موټر په نښه کوي ، ځينې خاص محافل يـا خاص ملکي موټر انفجار کوي هغه د دښمن دسيسه ده چې په عراق او نورو سيمو کې له داسې ډيرو جناياتو نه پـرده پورتـه شوې ده، د داسې پيښو يوه علامه داده چې کله د دښمن په ضد زموږ عمليات ګرندي شوي، غټ استشهادي بريدونـه شوي او دښمن تلفات ګاللي بيا نو د دغه راز مرموزو انفجارونو لړۍ پيل شوې چې ښکاره علت يې د بهرنيو دسيسـه سازي ده،

دغه ډول مرموزې چاودنې په موږ پورې هیڅ اړه نه لري او نه باید په راپورونو کې د هغو مسئول موږ وپيژند شو، لکه څرنګه چې متأسفانه اوس د ملګرو ملتونو د راپورونو عادت جوړ شوي.

دملکي تلفاتو دمخنيوي لپاره عالیقدر امیرالمؤمنین وخت په وخت مجاهدينو ته خاصې لارښوني کړي چې د عامو خلکو له ژوند سره په خپلو جهادي عملياتو کې باید ډیر پام وکړي، په همدې منظور د اسلامي امارت لخوا د ملکي تلفاتو د مخنيوي لپاره یوه باصلاحیته کاري کمیټه هم جوړه شوې چې باید د ملکي تلفاتو په مخنيوي کې جدي ګامونه پورته کړي، په کوم ځای کې چې ملکي تلفات پيښ شي ور ته رسیدګي وکړي، قضیه یې وڅیړي او لازم اقدامات یې په وړاندي ترسره کړي.

د مرموز چاودنو عاملین امریکایي استخباراتي کثیف لاسونه او ورسره د کابل اداري د استخباراتو بدنام ارګان ده چې هسې هم ټول په کې پخواني کمونستان چې د انسان په وژنه کې خورا مهارت لري او ترې لذت اخلي ځای په ځای شوي دي.

۱۴-په ۲۰۱۳م کال کې د افغانستان له ډیرو سیمو بهرنیان ووتل، او مسئولیت یې افغان ځواکونو ته وسپاره، په همدې سیمو کې اوس امنیت نسبي ښه شوی، د دې مطلب خو به دا نه وي، که بهرنیان له افغانستانه ووځي، نو تاسې به د افغانستان د اوسنی اداري سره جګړې ته دوام ورنه کړئ؟ همدا امنیتي ځواکونه او حکومتي نظام به تایید کړئ؟

ځواب: موږ مخکې هم اشاره وکړه، له هغو سیمونه چې بهرني ځواکونه تښتیدلي دي، خپل مراکز یې ټول کړي دي، په هغو سیمو کې په پراخه اندازه مجاهدين فعاله شوي دي، داسې نه ده چې له هغوځایونو مجاهدين وتلي وي، بلکې په هغو سیمو کې لا فعاله شوي او خپل حضور یې پراخ کړي، هو هلته د کابل اداري لخوا یو شمیر پوستې او عسکر هم شتون لري چې هغه دخپل سر د ساتلو په غم کې دي، هغه دخپلو پوستو نه یوه لویشت هم یو خوا بل خوا نشي وتلای، اوبه او خوراک په ډیره سختۍ ترلاسه کوي، او په هغه اطرافي سیمو کې د کابل اداري د عسکر و لخوا موږ په وړاندي ډیر مزاحمتونه هم نشته اونه هم مزاحمت کولای شي، هغوی په خپلو څو پوستو کې په قرنطین کې ژوند کوي نوځکه موږ هلته اوس پراخه جګړې نه لرو بلکې د جګړې او بریدونو لپاره اصلي موارد نشته، خو په دې سیمو کې زموږ د فعالیتونو لپاره ډیره پراخه ساحه تشه ده چې موږ اوس ازاد په کې اوسیږو، مراکز لرو، تمویل ځایونه لرو، ذخایر لرو او هرڅه په اختیار کې لرو، اوښه د ډاډ وړ امنیت مو په کې ټینګ کړی.

او په یادو سیمو کې د جګړونه شتون په دې معنی هم نه ده چې موږ د کرزي له اداري سره مشکل نه لرو.

۱۵-نړیواله ټولنه په افغانستان کې د بهرنیانو د حضور څخه ملاتړ کوي، ایا داسې ممکنه نه ده، چې طالبان هم د یو ځانګړي میکانیزم له لارې د دې حضور څخه ملاتړ وکړي، او یا نړیواله ټولنه قانع کړي، څو بهرنیان له افغانستانه وتلو ته اړ کړي؟

ځواب: یرغلګر خو چې افغانستان ته راغلي طبعا د یوې ورځې لپاره نه وو راغلي، اوږده پلانونه یې لرل، اوږدې طمعې یې لرلې او لابه هم غواړي خپل یرغل په بیلابیلو بهانو او د بیلابیلو ملاتړ ونو په وسیله وغزوي، خو تر هغه ځایه چې زموږ مسئولیت جوړیږي هغه د مبارزې دوام ده، بهرني ځواکونه پخپله اسلامي خاوره کې منل د هیڅ ویښ او با ضمیره افغان لپاره دمنلو نه ده، موږ هم د با احساسه افغانانو او بیا مسلمانانو په صفت نه غواړو اشغالګر ځواکونه تر هرې بهانې او

میکانیزم لاندې چې وي دلته پاتې وي، هغه څه چې زموږ دنده ده هغه جهاد ده، هغه لاره تعقیبول دي چې زموږ نیکونو د همدا راز یرغلګرو په وړاندې انتخاب کړي وه ، دالاره به زیان او تکلیفونه ولري، سختي به ولري، قرباني به وغواړي خو په نتیجه یې مطمئن یو چې تر لاسه کوو به یې ، داسې ورځ به ان شاءالله راځي چې یرغلګر بـه لـه هیواده پـه بشپړ ډول وځي، دلته به تصمیم افغانان نیسي چې څه وکړي، او پـه دې هم متقین یو چې کـه افغانان پـه خپـل وحدت، میړانه او اسلامي مسئولیت سره یرغلګر له هیواده وتلو ته اړ نه کړي، بل هیڅوک نشته چې دا کار وکړي اونه بله داسې معقوله لار شته چې د قدرت په اوج کې غرقه امریکا دعقل اومنطق په بناء د ستونزو حل ته راماته کړي.

۱۶–امریکا وېلي که هغوی له افغانستان څخه سر تیري وباسي، نو دې هیواد کې په کورنۍ جګړه پیل شي، تاسې یې په اړه څه نظر لرئ؟

ځواب: داسې نه کیږي، که امریکایي یرغل نه وي افغانان به پخپله د معقولو لارونه د ستونزو د حل لپاره لاس پـه کار شي، موږ ډېرې داسې لارې لرو چې خپل مشکلات پخپله پرې حل کړو، هغه ځیرې چې یو وخت د کورنیو جګړو د پیلولو شوقیان وو هغوی ډیر بنه وآزمویل شول، ټولو خپلو خلکو ته امتحان ور کړ، هغوی د څو پیسو غله وو، د څو چو کیو، عیاشیو او مفاسدو لپاره یې دلته زموږ د جهاد آرمانونه په اوبو لاهو کړي وو، چې له امریکایي یرغل سره یې ځیـره نوره هم ښکاره شوه ،افغان میړنی ولس نور د هیڅ هغه چاملاتړ نه کوي چې د کورنیو ستونزو د بیا راژوندي کیدو باعث شي، دلته به نور د الله تعالی له قانون سره سم اسلامي نظام منل کیږي، دهغه نظام په تقویه او شاوخوا کې به ټول افغانان، هر قوم او هره قبیله ځان ګوري او د ټولو لپاره به د هوساینې او راحت سبب وي ان شاءالله.

۱۷–د امریکا سره د امنیتي تړون دلاسلیک په صورت کې به امریکایي سر تیري او د ناټو سر تیري دلته پاتې وي، ایا دا د یوې اوږدې جګړې پیل نه دی؟

ځواب: هو! همداسې ده، امریکایان داځل بیا ځان غولوي، کوښښ کوي دلتـه مجاهدینو تـه داسې پیغام ور کړي چې دوی خو پاتې کیږي، نو مجاهدین باید د دوي غوښتنو ته تسلیم شي، دوی ډیر سادګان دي، دوی لا هم موږ نه یو پیژندلي، دوي لاهم پخوانیو پر لیسې ناکامیو او اشتباهاتو ته دوام ور کوي، که دوي وغواړي زموږ په خاوره کې اډې ولـري نو دا کوم داسې هیواد نه ده چې په راحت بـه پـه کې شپې سبا کړي، دلتـه بـه جګړه دوام کوي، لـه امریکایي شـتون سره هیوادنی مخالفت جمع سیمیز مخالفت دواړه بـه لاس پـه کار کیږي، موږ لـه جهادڅخـه ،نه ستړي کیږو، جهاد عبـادت بولو او پـه عبادت کې مسلمان د ستومانۍ احساس نه کوي، موږ به افغانستان د خارجیانو لپاره دنویو تکتیکونو په کارولو سره داسې سور تنور کړو چې پخوایې دوی ساری نه وي لیدلي ان شاءالله.

۱۸–طالبان له دیارلس کلونو وروسته د یوې اوږدې جګړې لپاره چمتوالی لري؟

ځواب: هو! الحمدلله ، د جګړې دیارلس کلنۍ تجربې، د جګړې دیارلس کلنوبیلابیلو پیښنو موږ تـه ډیر څه رازده کړل، موږ د جهاد د دوام لپاره د خپل اسلامي احساس او ایمان له مخې خوراچمتو یو، زموږ ځوانان همدااوس په تعلیمي مراکزو کې

۲۰۰قوماندان نافذالله د ۱۱ میاشتې په ۷ تاریخ دزابل په مرکز کې ووژل شو

۲۰۱ فرقه مشر محمد عمر او ۶ملګري د ۱۱ میاشتې په ۶تاریخ دزابل په مرکز کې ووژل شول

۲۰۲ اربکی ساز ملک باریګل د ۱۱ میاشتې په۷ تاریخ په روزګان دهراود بازار کې ووژل شو

۲۰۳ = ۲۰۴ قوماندان ولي محمد اوقوماندان ابوبکر د ۱۱ میاشتې په۸ تاریخ دکندهار غورک کړ کوشم سیمه کې ووژل شول

۲۰۵ معاون هستي ګل د ۱۱ میاشتې په۸ تاریخ دژړۍ په سلیم کاریز کې سره له ۵عسکرو ختم شول

۲۰۶ قوماندان قاسم د۱۱ میاشتې په۸تاریخ دمرجې په عبادالله قلف مستوخان چاراهي کې سره له ۳نورو عسکرو ووژل شو

۲۰۷ دکندهار دشورامرستیال مولوي عطامحمد د۱۱ میاشتې په۱۱تاریخ دکندهار ښار په چوک مدد کې ووژل شو

۲۰۸ قوماندان قطب الدین ۱۱ میاشتې په ۱۳تاریخ دسرپل دګوسپندي په اولمه کې سره له دوو ساتونکو قتل شو

۲۰۹ قوماندان حقمل د۱۱ میاشتې په۱۵تاریخ دموساکلا په چغاله کې سره له ۴عسکرو ووژل شو

۲۱۰ قوماندان سرباز د۱۱ میاشتې په ۱۶تاریخ دمعروف په ساګزو کې ووژل شو

۲۱۱ قوماندان چمن د۱۱ میاشتې په۱۷ تاریخ دزابل دشوري په لوړګي کې ووژل شو نوموړی دعمرزو دپوستې قوماندان وو

۲۱۲ قوماندان محمد خان د۱۱ میاشتې په۱۸تاریخ دترینکوټ دهراود توغی کی سره له ۴عسکرو قتل شو

۲۱۳ قوماندان سوالیشا د۱۱ میاشتې په۱۹تاریخ دروزګان دچورې په زردیګي کې ووژل شو

۲۱۴ قوماندان نظر د۱۱ میاشتې په۱۹تاریخ دترین کوټ دهراود بازار کې ووژل شو

۲۱۵ =۲۱۶ دمرجې قوماندان امنیه حاجي توریالی او قوماندان (مرګ)چې دتریخ ناور دپوستې مشر وو د۱۱ میاشتې په ۲۰تاریخ په سستاني کې ووژل شول

۲۱۷ قوماندان عبدالرحیم د۱۱ میاشتې په۲۰ تاریخ دمرجې په کاریز صدي کاکړانو کې ووژل شو

۲۱۸ قوماندان شمس الله د۱۱ میاشتې په۲۰ تاریخ په معروف امني بند کې ووژل شو

۲۱۹ قوماندان داوود د۱۱ میاشتې په ۲۱تاریخ دګرم سیر په درویشان کې له خپلې پوستې سره نیژدې ووژل شو

۲۲۰ قوماندان حاجي سرور د۱۱ میاشتې په ۲۲تاریخ دفاریاب پښتونکوټ میان دره کې ووژل شو

۲۲۱ قوماندان سعدالله د۱۱ میاشتې په۲۳ تاریخ دغور په شهرک کې ووژل شو

۲۲۲ دشوراغړی حاجي قدیر د۱۱میاشتې په ۲۴تاریخ دکندهار په ارغنداب کې ووژل شو

۲۲۳ قوماندان (کاسد) د۱۱میاشتې په ۲۵ تاریخ دخاص روزګان په شالی ناوه کې ووژل شو

۲۲۴ اکملاتي مسئول صمد د۱۱ میاشتې په۲۵ تاریخ دهرات په پښتون زرغون کې ووژل شو

۲۲۵ حاجي محمد رسول د کوچیانو نماینده د۱۱ میاشتې په ۲۸ تاریخ دزابل په قلات ښار کي دار تباطي په توسط ووژل شو

۲۲۶ قوماندان همکار د۱۱ میاشتې په۲۸ تاریخ دنادالي په سیداباد کي ووژل شو

۲۲۷ خادی جمع ګل چي دمجاهدینو دځیلوانو کورونه به یې ور نړول د۱۱ میاشتې په ۲۹ تاریخ د کندهار ښار له شرکت میوې سره ووژل شو

۲۲۸ ډګروال عبدالاحدد ۱۲ میاشتې په ۴ تاریخ دمرجې په شیخانو بلاک کي سره له ۳نورو عسکرو ووژل شو

۲۲۹ قوماندان منصور د ۱۲ میاشتې په ۵تاریخ دموساکلا په یتیمچي کي سره له دوو نورو عسکرو ووژل شو

۲۳۰ قوماندان توتي د ۱۲ میاشتې په۷ تاریخ سره له څلورو عسکرو دګرشک په میر منداب کي ووژل شو

۲۳۱ قوماندان عبدالواحد د ۱۲ میاشتې په ۱۴تاریخ دفاریاب لولاش په تاخیلو کي ووژل شو

۲۳۲ قوماندان نیک محمد طوفان د ۱۲ میاشتې په ۱۶تاریخ ددهراود په بازګیر کي ووژل شو

۲۳۳ دهرات دقول اردو دتفتیش آمر نجم الدین د ۱۲ میاشتې په۱۹ تاریخ دهرات په ښار کي ووژل شو

۲۳۴ قوماندان جمال ناصر ننګرهاری چی دزابل داغنداب او خاک افغان ولسوالیو دملي اردو دمهم ۷۵۰ کنډک قوماندان وو د ۱۲ میاشتې په۲۰ تاریخ په ارغنداب کي ووژل شو

۲۳۵ بریدمن صفی الله د ۱۲ میاشتې په ۲۳تاریخ دهرات ښار په چکان سیمه کي ووژل شو

۲۳۶ قوماندان حاجي ګران د ۱۲ میاشتې په۲۵ تاریخ دنادعلي په سید اباد کي ووژل شو

۲۳۷ قوماندان قلم یار د ۱۲ میاشتې په ۲۶تاریخ دنادعلي په چانجیر کي سره له ۳نورو پولیسو ووژل شو

۲۳۸ =۲۳۹ قوماندان خال ضابط او قوماندان اولیاګل د ۱۲ میاشتې په ۲۷تاریخ دفاریاب شیرین تګاب په جوکلدي سیمه کي ووژل شول

۲۴۰ قوماندان سخي د ۱۲ میاشتې په۲۸ تاریخ دګرشک به کرکز کي ووژل شو

۲۴۱ سر ګروپ لنډو دغورک دولسوال ورور د ۱۲ میاشتې په ۲۷تاریخ دغورک په مرکز کي سره له ۶عسکرو ووژل شو

۲۴۲ قوماندان صالح د ۱۲ میاشتې په ۲۹تاریخ دروزګان په مرکز ترینکوټ پای ناوې په شنه کلا کي ووژل شو

قاري محمدیوسف احمدي داسلامي امارت ویاند۳۱/ ۱۲/ ۲۰۱۳م ۱۴۳۵/ ۲/ ۲۸ هق- ۱۳۹۲/ ۱۰/ ۱۰هش

مفتی ابویاسر

# په اسلام کې

## دمسنونو اعمالو مقام

**لمړی دستوپیژندنه**

سنت د پیغمبر صلی الله علیه وسلم ، او صحابه طریقی ته وېل کیږي ، یاسنت هغه عمل ده چي پیغمبرصلی الله علیه وسلم یې په کړنه ټنګار کړی وي :

**سنت په دوه ډوله دي:**

۱ سنت مؤکده : چي سنن الهدی هم ورته ویل کیږي

۲ سنت غیر مؤکده : چي سنن زواید هم ورته ویل کیږي

سنت مؤکده : هغه دي چي پیغمبرصلی الله علیه وسلم اوصحابه رضی الله تعالی عنهم تل کړي وي ،یاهغه سنت چي پیغمبرصلی الله علیه وسلم یې دکړو تاکید کړی وي ، اوبې دعذر څخه یې نه وي پریښي ، یاهم هغه سنن دي چي پیغمبرصلی الله علیه وسلم یاصحابه وو دعبادت په ډول اداکړي وي . [دسنت دغه دري واړه تعریفونه علماو ذکر کړی دی ]

**سنت مؤکده** : په حکم اوعمل کي دواجبو په شان دي ، یعني بې عذر ه یې په ترک سره ګنهګاریږي او همیشه ترک کونکی یې فاسق بلل کیږي اودپیغمبر صلی الله علیه وسلم له شفاعت څخه به محروم وي ، لکه په شامي کي چي دي : والسنة نوعان سنة الهدی وترکها یوجب اساءة وکراهیة کالجماعة والاذان ونحوها .

**دسنت مؤکده اقسام**

دغه مؤکده سنت بیا په دوه ډوله دي ۱ سنة عین ۲ سنة کفایة

**سنت عین**: هغه سنت دي چي اداکول یې په هرمکلف باندي سنة وي لکه د لمانځه سنتونه یا لکه دماسپښین دلمانځه سنت ، تراویح اوداسي نور ...

**سنت کفایه**: هغه سنن دي چې په هرمکلف یې ادا کول ضروري نه وي چې ځینې مکلفین یې اداکړي نور یې په ترک نه ګنهګاریږي ، اوکه یې ټول پریږدي نوبیا ټول ګنهګاریږي لکه په جماعت سره دتراویحو لمونځ ،

په شامی کي چي دي : ان السنة قد تکون سنة عین وسنة کفایة ومثاله ماقالوا في صلوة التراویح انهاسنة عین وصلاتها بجماعة في کل محلة سنة کفایة.

**اوسنتغیرمؤکده**: هغه سنن دي چي له پیغمبرصلی الله علیه وسلم څخه دعادت په ډول صادر شوي وي ، یاهغه اعمال چي تل یې نه وي کړي ، هغه لکه دپیغمبرصلی الله علیه وسلم طریقه په خوراک څښاک لباس او ښملاستلو کي . دغه سنت په پریښولو کي دکراهیة تنزیهي حکم لري .

**دسنتو په لامل دپیغمبر صلی الله علیه وسلم سره یوځای کیدل**

ددي دواړه ډولو سنتو په هکله دپیغمبرصلی الله علیه وسلم ارشاد :

عن انس رضی الله تعالی عنه قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من احب سنتي فقد احبني ومن احبني فکان معی في الجنة رواه الترمذي . مشکوة ۳۰

ژباړه : انس رضی الله وایې چي پیغمبرصلی الله علیه وسلم وفرمایل : څوک چي زما دسنتو سره مینه لري ، نوهغه له ماسره مینه لري ، اوڅوک چي له ماسره مینه لري ، نو هغه به له ماسره په جنت کي یوځای وي .

حاصل داچې دسنتوسره مینه نه یوائې داچي دجنت دداخول سبب ده بلکه دپیغمبرصلی الله علیه وسلم سره درفاقت ستر نعمت هم وربانديي لاس ته راوړل کیږي .

**دیوه سنت په سرته رسولو دسلو شهیدانو اجر**

په بل حدیث کي راغلي عن ابي هریرة رضی الله تعالی عنه قال : قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من تمسک بسنتي عند فساد امتي فله اجر مأة شهید . مشکوة ۳۰ څوک چي په یو سنت دامت دفساد په مهال عملي کړی نو ده ته به دسلو شهیدانو اجر ورکول کیږي .

حضرت شاه محمد اسحق رح لیکلي چي دغه کس په یوه سنت عمل کوي الله تعالی دسلو شهیدانو درجه ورکوي دا له دي امله چي دغه تن دفساد اوفتنو په وقت کي چي کله په

سنت هرځل عمل کوي نوله یوه ستر ازموینښت سره مخ وي دفساقو اونورو بي دینه خلکو له امله پیغورونه او استهزاوي تیره وي ، شهید خو ددین داحیا اوسرلوړي لپاره په خپل ځان باندي یو تکلیف تیر کړ اودغه تن همیشه دغه تکلیف تیره وي ،

**دسنتو په رعایت څلورستر انعامونه**

من حفظ سنتي اکرمه الله تعالی باربع خصال المحبة في قلوب البررة ، والهیبة في قلوب الفجرة ، والسعة في الرزق ، والثقة في الدین . شرح شرعة الاسلام ص\ ۸

امام مالک رحمه الله څخه نقل شوي :ان السنة مثل سفینة نوح من رکبها نجی ومن تخلف عنها غرق . فتاوی رحیمیة ۱۰\ ۳۸۹

ژباړه: چاچي دپیغمبرصلی الله علیه وسلم دسنتو احترام وکړ نولوی خدای به یې په څلورو نعمتونو ونازوي ،۱ - دنیکو اوښو خلقو په زړونو کي به محبوب وي ، ۲-دبدو اوفاجرانو په زړونوکي به یې هیبت اوویره وي ، ۳ - رزق اوروزي به یې پراخه شي ۴ - اوپه دین کي به محکم وي [یعني خاتمه به یې په ایمان وي ]

**سنت هسي مه ګڼۍ**

من تهاون بالاداب عوقب بحرمان السنة ومن تهاون بالسنة عوقب بحرمان الفرایض ومن تهاون بالفرایض عوقب بحرمان المعرفة . تفسیر عزیزي ۴۳۲ تحت ایة وضربة علیهم الذلة الخ

ژباړه : څوک چي دمستحبو او آدابو رعایت نه کوي نو له سنتو څخه دمحرومۍ په عذاب به اخته شي ، اوڅوک چي دسنتورعایت نه ساتي نو دفرضوڅخه دمحرومۍ په عقاب به اخته شي ، اوڅوک چي دفرضو رعایت نه ساتي نو دلوی خدای دمعرفت اوایمان دمحرومتیا په عذاب به اخته شي .

حاصل داچي که یوتن دمستحباتو عمل پریږدي نو بیا دسنتو دتوفیق څخه هم محرومیږي اوچي سنت پریږدي نو دفرضو دتوفیق څخه محرومیږي اوچي فرض پریږدي نو دایمان له دولت څخه محرومیږي اوهغه دبشریت دطبعي او خلقي تقاضا څخه محرومیت ده.

# جګړې جنايتونه

## (ډسمبر مياشت)

سيد سعيد

د تېر(۲۰۱۳ز)کال دډسمبرد مياشتي په ۳مه نېټه دکابل ولايت د سروبي ولسوالۍ داوزبين سپيرکنډي په کلي باندي يرغلګرو اوداخلي عسکرو چاپه وهلې، دچاپې پرمهال يې دکلي ملاامام(مولوي حيات الله )شهيد کړی اويوبل تن ولسي وګړی يې ژوبل کړی چي وروسته هغه هم دژوروټپونوله امله شهيد شوی دی.

دډسمبرپه۳مه دجوزجان ولايت دمرکزاړوند(حسن تابن اوشکرک ) سيمه کي ددوستم ملېشو پنځه ويشت تنه ولسي وګړي نيولي اودبنديانو په توګه يې له سيمي څخه انتقال کړي ، دځايي خلګوپه ويناد وستمي ملېشو همدا پنځه ويشت تنه ولسي وګړي دخپل وژل شوي قوماندان دوژني په توربنديان کړي ، خواصل خبره داده چي دقوماندان په وژنه کي نيول شوي کسان هيڅ لاس نه لري ،حتی ملېشې هم پوهيږي چي همدغه خلګ يې دقوماندان په وژنه کي ښکېل نه دي مګردځه پيسوترلاسه کولوپه خاطريې همداغريب خلګ په بندکي اچولي دي.

دډسمبرپه ۵مه دهلمندولايت د مارجې ولسوالۍ دسستاني په سيمه کي يرغلګرو ځواکونودچاپې پروخت دوه تنه ملکي وګړي دبنديانو په توګه له ځان سره وړي دي.

دډسمبرپه ۲مه دهلمندولايت د موسی کلاولسوالۍ ديتيمچي کاريز په سيمه کي ځايې اربکيانوورورسته له هغه چي قوماندان يې (منصور)دطالبانو په بريدکي ووژل شو،دوه تنه ولسي وګړي شهيدان کړي دي.

د ۵ سمبر په ۱۰مه د کاپيسا ولايت د الــه ساى ولسوالۍ په صادقانو کلي کي د يرغلګرو ځواکونو په بمبار کي اته تنه ملکي هيوادوال ته مرګ ژوبله اوښتې ده ، عيني شاهدانو رسنيو ته ويلي چي: په دغه بمبارکي چي دنقشبندي په نوم يو کليوال پرکوروشو ،د کور څښتن (نقشبندي ) او درې تنې ښځې پکي شهيدانې شوي او ددرو ميرمنو په ګډون يو ماشوم پکي ټپي شوی دی .

د ۵ سمبرپه ۱۲مه د زابل ولايت د ارغنداب ولسوالۍ کي داخلي عسکرو دعملياتو پرمهال ولسي خلګ تهديد کړي او ډيرمالي زيانونه يې ورته رسولي دي

د ۵ سمبرپه ۱۳مه دزابل ولايت د ارغنداب ولسوالۍ دمرغابي له سيمي څخه داخلي عسکرو د مسجد د ملاامام په ګډون درې تنه کليوال چي يو يې ډاکټردی د بنديان په توګه له ځان سره وړي دي. کـړي دي.همدارازپه دغه يرغل کي عسکرو دولسي خلګو زيات شمېرموټرسايکلونه بيولي او ځيني يې سوځولي هم دي.

د ۵ سمبرپه ۱۳مه اربکيانو د پکتيکا ولايت په جاني خيل ولسوالۍ کي په يو ملکي موټر ډزي کړي، يو سړی او دوه کوچنيان يې ټپيان کړي دي.

د ۵ سمبرد ۱۴مي نيټې په ماښام اشغالګرو عسکرو دشپنيو عملياتو په لړکي د بغلان ولايت د بغلان ولسوالۍ په انارخېلو او ورڅېرمه سيمو کي دولسي خلګو پرکورونو چاپې وهلې ، دچاپو پروخت يې خلګو ته زيات مالي تاوانونه رسولي او په اخرکي يې اووه تنه ملکي هيوادوال دبنديانو په توګه له ځان سره وړي دي.

د ۵ سمبرپه ۱۴مه نيواکګرو ځواکونو د شپنيو عملياتو په لړکي د هلمند ولايت د نوزاد ولسوالۍ : دبرنوزاد کاريز په سيمه کي د چاپې پرمهال دولس تنه ولسي هيوادوال ژوبل کړي ، يو تن يې بندي کړی او ډيرزيات مالي زيانونه يې خلګو ته اړولي دي.

د ۵ سمبرپه ۱۴مه د زابل ولايت د شينکۍ ولسوالۍ په شينکۍ کلي اربکيانو يو کليوال د مسجد مخته شهيد کړی دی.

د ۵ سمبرپه ۱۵مه نيټه د ننګرهار ولايت د لالپورې په سيمه کي د کابل سيند په منځ کي د نيواکګرو بې پيلوټه الوتکي پريوې وړې کشتۍ باندي بريد کړی ، په ياده شوې حمله کي پنځه تنه ملکي هيوادال شهيدان شوي او يو نامعلوم شمېرژوبل شوي دي.

دږ سمبرپه ۱۵مه د لوګر ولايت د برکي برک ولسوالۍ په احمد شاه کلا سيمه باندي يرغلګروځواکونو دهاوان مرمۍ اورولي، داشغالګروپه دغه هوايې بريدکي چي يوه مرمۍ يې دخلګو د استوګني پرځای لګېدلې دوه تنه ولسي وګړي شهيدان شوي او اووه کسه ټپيان شوي دي.

دږ سمبرپه ۱۵مه اربکيانو د غزني ولايت د شلګر ولسوالۍ په حبيب کوډلو سيمه کي دمنارکلي يوملکي وګړی (عبدالسلام دتاج محمدزوی )شهيد کړی دی.

دږ سمبرپه ۱۲مه يرغلګرواو دخلي عسکرود شپنيو عمليا تو په لړکي دفراه ولايت د پشترود ولسوالۍ دخليفه کاريز په سيمه کي چاپه وهلې، دخلګو کورنه يې تلاشي کړي اودرې تنه ولسي وګړي (پلار،زوی اويوتن مليمه )يې بنديان کړي دي.

دږ سمبرپه ۱۷مه د ننګرهار ولايت د چپرهار ولسوالۍ په دره اوموره سيموکي کورنيوعسکرود استوګني پرسيمودهاوان پيرونه کړي چي له امله يې يوه ښځه اودرې ماشومان شهيدان شوي اويو سړی او پنځه کوچنيان ژوبل شوي دي.

دږ سمبرپه ۱۸مه دکندهارولايت دسپين بولدک ولسوالۍ په ياروکاريزسيمه کي کورنيوعسکرويوملکي وګړی په دې تورچي ماين يې ښخ کړی بندي کړی ، عسکرووروسته همدغه بندي پرماين درولی او ماين ته يې انفجاروركړی چي نوموړی بندي پکي شهيد شوی دی.

دږ سمبرپه ۲۰مه د ننګرهار ولايت دخوګيانو ولسوالۍ په مملي باغ سيمه کي سرحدي پوليسو دملکي خلګو دسپرلۍ پرموټرډزي کړي چي له کبله يې يوه ښځه اودوه نارينه ټپيان شوي دي.

دږ سمبرپه ۲۲مه داروزګان ولايت د خاص اروزګان ولسوالۍ په شالي ناوې کي اربکيانو يوليونی چي دژمي په سړه هوا کي به يې په دښتونو اوغرونو کي شپې تېرولې په دې پلمه چي ګواکي طالبانو ته جاسوسي کوي شهيد کړی دی.

دږ سمبرپه ۲۲مه د دهرات ولايت د ګلران ولسوالۍ په سياخاوال سيمه کي داخلي عسکرودوه تنه ولسي وګړي ژوبل کړي او څلورکسه نوريې چي يو پکي ډاکټردی بنديان کړي دي.

د ۍ سمبر په ۲۷مه د پروان ولایت د سیاه ګرد ولسوالۍ څخه ځایي اوسیدونکو رسنیو ته ویلي چي د ولسوالۍ په بازار کي د اربکیانو د قوماندان (ملا ) له وژل کیدو وروسته د نوموړي وسله والو د ولسي خلګو په ځورولو لاس پوري کړی ، خلګ تهدیدوي، د کورونو پرلوري موډزي کوي ، یو کلیوال مو په همدې ډزو کي ژوبل شوا و تردې مهاله یې زیات مالي زیانونه هم راته رسولي دي .

د ۍ سمبر په ۳۰مه د کاپیسا ولایت د تګاب ولسوالۍ په شمشادبیس سیمه کي داخلي عسکرو یو ماشوم چي کتابونه یې په لاس کي وو شهید کړی ، خلګو د کورنیو عسکرو د دغه عمل په عکس العمل کي د احتجاج په دود رسنیو ته ویلي چي: دې ظالمانو زموږ یو ماشوم شهید کړ ،موږډیرترې تنګ شوي یو ، خپلو پټیو ته نشو تلای، رمې نشو څرولای، په یوه اوبله پلمه مو ځوروي او کړوي.

د ۍ سمبر په ۳۰مه دارزګان ولایت د دهراود ولسوالۍ د کبنته لوندیانو په سیمه کي داخلي عسکرو یو لسي و ګړی چي پر موټرسایکل یوه زنانه هم ورسره وه د طالبانو سره د ارتباط په تورد واړه بندیان کړي دي.

د ۍ سمبر په ۳۱مه د سمنګان ولایت په مرکزکي د والي ساتونکو وسله والو ترلس تنه ډیر مظاهره کونکي شهیدان کړي او ټپیان کړي دي، د سمنګان والي خیرالله او د ولایتي شورى رئیس احمدضیاء هم منلې چي عسکرو یې درې تنه لاریون کونکي شهیدان کړي او لس کسه یې ژوبل کړي دي.

مأخذونه: [بي بي سي راډیو ،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک ،روهي ویبپاڼه ،لراوبر= ،نن ټکی اسیا=اوبینوا=]

# دروغگو را حافظه نباشد

(محمود احمد نوید )

از قدیم گفته اند : دروغگو را حافظه نباشد ؛ این جمله بیشتر برای افرادی مصداق پیدا می کند که به دروغگویی شهرت دارند ؛ مثلا در گفتار ادعایی می کنند و سپس در کردار و رفتار بر خلاف دعوای شان عمل می نمایند ؛ چون فراموش کرده که قبلش چی گفته اند ؛ امروزه یکی از بارزترین مصادیق این ضرب المثل شیرین زبان دری ؛ دولت دروغگوی آمریکاست که از بدو تجاوز نابرابرش علیه ملت مظلوم افغانستان به دروغ گویی های متعدد پرداخته و در طول سالهای اشغال ، با تقلب و ریاکاری ، در رنگ های مختلف و لحن های متفاوت ، جنگ علیه بشریت مظلوم در افغانستان را توجیه نموده و با وقاحت تمام به دنبال کتمان شکست خویش برآمده است ؛ اما که خوشبختانه همیشه دروغگو از آب در آمده و در پیش چشم جهان و مردم دنیا رسوا و روسیاه گردیده است .

مبارزه علیه تروریزم بین المللی ، دفاع از حریم و امنیت آمریکا ، رسیدگی به حقوق بشر ، آوردن دموکراسی و - به اصطلاح - نظام آزادی ، ساختن افغانستان و آوردن آبادی ، مبارزه با مواد مخدّر و ... شعارهای جذاب و فریبنده روزهای نخست تجاوز و قشون کشی آمریکا به افغانستان و خاورمیانه بود که به مرور زمان و طی مدت بیش از دوازده سال ، بطور تدریجی رنگ باختتند و دنیا آگاه شد که همه این شعارهای ظاهرازیبا و جذاب از سوی آمریکایی ها ، برای فریب افکار عامه به شکل ابزاری استفاده شده و دولتمردان خودخواه ، مستبد و کج اندیش آمریکا بنابر سیاست های استعماری در طی این مدت جز دروغ و دغل دیگر کاری ننموده اند و همه پلان های شوم و ترفندهای شیطانی سیاستمداران غرب ، علیه نابودی خاورمیانه و جهان اسلام بوده و آنها مقاصد شومی را در اذهان پَست شان ، پست زمینه نموده بودند که اگر شرایط وفق مرام شان به پیش رفت بتوانند سر فرصت به همه خواسته های شوم خود نایل آیند !

آمریکا آنقدر دروغ گفت که همه از آن کشور ، قطع امید و سلب اعتماد و اعتبار نمودند ؛ حتی که عموم ملت آمریکا با سیاست های جنگ افروزی و ادامه اشغال سرزمین اسلامی افغانستان بشدّت مخالفت کرده و بارها از دولتمردان آن کشور خواستند که به جنگ بی سود و سراسر شرّ خود در افغانستان هرچه عاجل پایان دهد و بجای تمرکز غلط بر سیاست خارجه ، متوجه بحران های جدی داخل کشور بشود ؛ اما دولت آمریکا جز دروغ و دورنگی در مقابل خواسته ملت آمریکا جوابی دیگر نداده است ؛ شرکای بین المللی آمریکا نیز دیگر آن اعتماد سابق را به آمریکا ندارند ؛ چون مخصوصا پس از افشاء شدن ماجرای شنود مکالمات تیلفونی سران غرب توسط دستگاهای استخباراتی آمریکا در اواخر سال ۲۰۱۳ م ، (که موجی از رسوایی ها برای آمریکا ببار آورد) اکثریت ، آمریکا را به چشم دشمن دیده و در تعامل با آن ، جانب احتیاط را لحاظ کرده و بجای احساس امنیت از سوی آن کشور ، بیشتر احساس ترس و نا امنی می کنند ؛ آنها در جنگ افغانستان به این حقیقت تلخ رسیده اند که چگونه قربانی اهداف سُلطه جویانه و استعمارگرانه امریکایی ها شده اند و چه ناباورمندانه از آنها در اشغال افغانستان (که در مسیر هوسرانی های آمریکا انجام شده) استفاده ابزاری صورت گرفته است .

آمریکا تا جایی دروغ گفت که حتی دولت دست نشانده کابل هم ظاهرا از دروغگویی های بی شمار آن خسته شد و بالاخره تصمیم به پُشت کردن گرفت ؛ اکنون کار بجای رسیده که کرزی نیز به آمریکا جواب سر به هواء می دهد ؛ چون ظاهرا درک نموده است که آمریکا جز دروغ و تقلب ، تزویر و ترفند دیگر سیاستی ندارد و بر بنیاد همین راهای غلط ، منافعش را جستجو می کند ؛ و تا جایی که بتواند از همه چیز استفده موقتی و ابزاری نموده و هر گاهی احساس کند نیازی به عوامل اجیرش ندارد آنها (اجیران فرومایه اش) را در لیست مهره های سوخته خود اضافه کرده و به آسانی دور می اندازد ؛ یکی از روشن ترین مصادیق دروغگویی آمریکایی ها ، سخنان تهدید آمیز آنها راجع به امضای پیمان ننگین به اسم امنیتی با حکومت دست نشانده اش در کابل پس از موافقه خاینانه جرگه شوم بود که گفته بود اگر تا ختم ۲۰۱۳ م آن پیمان ، از سوی کرزی امضاء نگردد آمریکا به احتمال قوی گزینه صفر را در افغانستان به اجراء خواهد گذاشت ؛ اما دیده می شود در حالیکه آن مهلت نیز به پایان رسیده و ۲۰۱۴ م هم داخل شد و کرزی نیز در پاسخ آمریکا با امضاء نکردنش "نه" گفته است ؛ ولی بازهم آمریکا همچنان از حقیقت گفته هایش طفره رفته و دنبال وقت کشی است ؛ این نمونه ی از دروغ های کلان و دوامدار آمریکاست و اینکه چه بی حافظه دروغ می گوید ؛ غافل از آنکه حافظه تاریخ همه چیز را به شکل اتوماتیک تسجیل می کند !

# دمورچل ورمې

## د سکروټو جامې

طالب جان

زمــوږ ژونــد د انتظـــار څپـــو اخيســـتی
انتظـــار لکـــه انګـــار څپـــو اخيســـتی

ګــلاب ســرې وينــې پــه حســن بانــدې څــاڅې
پــه اغزيـــو بانـــدې بـــار څپـــو اخيســـتی

ايمـــانونو څـــومره ګـــرم بـــازار ونيـــو
خدايــه خيــر کــړې دغــه ښــار څپـــو اخيســـتی

زمـــوږ حســـن دســـکروټو جـــامې وکـــړې
راســـره دې کـــه پـــه شـــمار څپـــو اخيســـتی*

اوبـــازانو! ګودرونـــه ورتـــه نيســـئ
دپـــرون دغـــاړې هـــار څپـــو اخيســـتی

دمـــريخ پـــه څيـــر مـــو ډيـــر دې تـــر شاپريښـــې
بيـــا مـــو عشـــق پـــه داســـې لار څپـــو اخيســـتی

انقـــلاب ښـــکاري غـــوټۍ دامیـــد راوړي
طالـــب جانـــه اســـتکبار څپـــو اخيســـتی

## د مینې پیغام

م عرفان الله عرفاني

تـــه مقتـــدا تـــه مـــو امـــام دمينـــې
جانانـــه زه دې يـــم غـــلام دمينـــې

ښـــکلا ښـــکلا دې کـــړه بـــد رنګـــه دنيـــا
ځکـــه دې کړمـــه احتـــرام دمينـــې

مـــين پـــه تـــا دې ټـــول عـــرب او عجـــم
وايـــي پـــه تـــا درود ســـلام دمينـــې

دا تـــږې زړه بـــه مـــې ســـېراب شـــي هلـــه
کـــه تـــه پـــرې وڅښـــې يـــو ډک جـــام د مينـــې

داُحـــد غـــره در ســـره مينـــه کـــړې
تـــا چـــې پـــرې ايښـــی وه خپـــل ګـــام دمينـــې

ر بـــې ســـتايلئ پـــه طـــه او يســـن
څـــومره اعلـــی لـــرې مقـــام دمينـــې

تـــورې تيـــارې شـــوې پـــه رڼـــا بـــدلې
کلـــه چـــې راوړ تـــا پيغـــام دمينـــې

تـــه مـــو ددیـــن او د دنيـــا لار ښـــودیـــې
څـــومره مـــو ښـــکلئ دی اســـلام د مينـــې

چـــې شـــفاعت کـــړې دمحشـــر پرميـــدان
پـــه (عرفـــاني) بـــه کـــړې لـــږ پـــام دمينـــې

## اربکیانو

حافظ محمدقاسم زهیب

لـه دښمنه راجـلا شـئ اربکیانو!
هلـئ هلـئ راشـئ راشـئ اربکیانو!

داوحشت دغه ظلمونه ګټه نه کـړي
خپـل ولـس سره پخـلا شـئ اربکیانو!

د دښمن د خـو ډالـرو تمه مه کړئ
د خپل دین په تمنا شئ اربکیانو!

په دفاع د دین وطن ناموس عزت کې
د غازي لالي تر شا شئ اربکیانو!

داپولیس دي که خادیان دي که ملیان دي
ټول په دې سره سلا شئ اربکیانو!

له دې کړو جنایاتو توبه ګار شئ
خپل خالق ته په ژړا شئ اربکیانو!

ټوکي نه دي دایمان ستره مسله ده
ایمانداره په رښتیا شئ اربکیانو!

د شیطان په طاغوتي لښکر کې مه ځئ
لاړ په لاره دالله شئ اربکیانو!

د میرویس او احمدشاه توره راواخلئ
ننګیالي د اریانا شئ اربکیانو!

د زهیب ټولي خبري عملي کړئ
چې خوشحاله په عقبا شئ اربکیانو!

## آزادي

صفیه/صفا/زابل

انتظار او امیدونه مرور شول
ستا د وصل ټول خیالونه مرور شول

زما د اوښکو په باران زرغونه نه شوې
نور د اوښکو بارانونه مرور شول

## ارزش خون شهید

حسن مبشر

کاخ خلقت را بنا خشت تجلای شهید
دفتر هستی کند تکمیل امضای شهید

باز امشب در سر پر شور من شور نوی
بر سر پا میکند هر لحظه نجوای شهید

گل اگر صد رنگ و بو دارد، زخاکش برمدار
تا نشوید روی خود از خون رگهای شهید

لاله از خون شهیدان نیست ، بلکه خاک خشک
خون دل از دیدگان پاشیده بر پای شهید

نیستان دهر سر بر دارد از دریای خون
ناله خونین چوبی میخیزد از نای شهید

مقصد مقتول جام باده فردوس نیست
بلکه «فردوسی» است مست جام صهبای شهید

آرزو دارم شهادت را که بعد مرگ من
مردمم گویند شعرت شاد یغمای شهید

بس یو ته مې د زخمي زړګي درمل یې
بې له تا نور درمانونه مرور شول

یو زه نه یم هر څه ستا په طلب ګرزي
بور اژاړي بهارونه مرور شول

د بلبلو د نغمو ژبې ګونګې شوې
ها د زانو کتارونه مرور شول

آزادي لکه سپوږمۍ له بره راشه
ستوري ټت دي اسمانونه مرور شول

د (صفاء) په دې خبرو یقین وکړه
ګودر ړنګ دي چنارونه مرور شول

# په ۲۰۱۳ کال کې د کابل اداري په زرګونه منسوبین د اسلامي امارت سره یوځای شوي دي

**د دعوت او ارشاد کمیسیون کلنی راپور**

میوند سادات

د افغانستان اسلامي امارت د ګران هیواد څخه د وحشي یرغلګرو د شړلو او د اسلامي او ملي نظام د رامنځته کولو په موخه د ران سپېڅلی مقاومت په لړکې د نظامي فعالیت تر څنګ سیاسي ،فرهنګي ،تعلیمي او دعوتي هڅې هم ګړندۍ کړې دي. د اسلامي امارت غښتلو مجاهدینو د پراخو پوځي ،سیاسي او فرهنګي لاسته راوړنو څخه علاوه په دعوتي ډګرکې هم ډیري بریاوې ترلاسه کړي ،هره میاشت د هیواد په بیلابیلو ولایتونو او ولسوالیو کې د دعوت او ارشاد کمیسیون په هڅو د کابل اداري څخه په سلهاو وتنه کارمندان راوزي او د اسلامي امارت غیږې ته پنا راوړي.

د افغانستان اسلامي امارت زعیم عالیقدر امیر المؤمنین حفظه الله د اخترونو په پیغامونو کې د کابل اداري سره په کاربوختو افغانانو باندې په وار وار ږغ کړی چې نور د یرغلګرو د ملاتړ او د هغوی د ګوډاګي رژیم څخه د خپل ولس وغیږې ته پنا راوړئ،وینبو او با احساسه هیواد وال د امیر المؤمنین غوښتنې ته لبیک وو ایه، خپلي دندي یې پرېښودې ،ځیني په خپلو شخصي کاروبار بوخت شول او ځینو یې د اسلامي امارت سره د اسلام او هیواد څخه د دفاع په سنګرونو کې جهاد پیل کړ.

په تېر کال کې چې د کابل د بلواکي اداري څخه کوم وکسانو د ولس وغیږې ته ځان سپارلی اجمالي یادونه یې په لاندې ډول د لوستونکو مخې ته تقدیمو و

د تېر (۲۰۱۳م )کال په اوږدو کې د اسلامي امارت د دعوت ،ارشاد ،جلب او جذب کمیسیون په هڅو او د ځایي مجاهدینو په ملاتړ د افغانستان په ختیځ او لویدیځ، شمال او جنوب کې په زرهاوو با احساسه هیوادوال د حقایقو په درک کولو د یرغلګرو له ملاتړه او د هغوی د لاسپوڅي رژیم سره د کار کولو څخه لاس اخیستی او د اسلامي امارت سره یوځای شوي دي.

دتېر(۲۰۱۳ز، )کال دجنوري د میاشتي په بیلا بیلو ورځو کي دکرزي دشوربدلي رژیم داردو، پولیسو، اواربکیانوله لیکوڅخه **۱۵۴**تنه بادرده هیوادوال ددغه ګوډاګي رژیم څخه بیزاره اوداسلامي امات سره یوځای شوي دي.

په فبروري کي **۵۳۹**تنه دکابل اداري دمختلفوارګانونومنسوبین داسلامي امارت دمجاهدینو سره ملګري شوي دي.

دمارچ په بیلا بیلوورځو کي **۴۸۴**تنه بااحساسه عسکرداسلامي امارت داتلومجاهدینوته تسلیم شوي دي.

داپریل په میاشت کي **۳۸۲**تنه هیوادوال داردو، پولیسو اواربکیانوله لیکوڅخه راجلااوداسلامي امارت مجاهدینوته یې پناراوړېده.

دمئ په مختلفونیټودکرزي دبلواک رژیم څخه **۵۲۲**تنه کارمندان راووتلي اودجهادمورچلونوته یې ځانونه رسولي دي.

په جون کي **۵۴۵**تنه بااحساسه هیوادوال دکابل اداري څخه بیزاره اوداسلامي امارت سره یوځای شوي دي.

جولایې کي **۴۷۹**تنه عسکرد قهرمانومجاهدینوسره ملګري شوي دي.

داګست په میاشت کي**۷۲۷**تنه ویښ وطنوال چي دکرزي اجیري اداري سره یې کارکاوه داسلامي امارت سره یوځای شوي دي.

په سپټمبرکي **۸۷۸**تنه بااحساسه هیواددوال چي دکرزي داجیررژیم سره یې دندي درلودي ،خپلي وظیفې پرېښودي اوداسلامي امارت سره یې خپل پیوستون اعلان کړ.

اکتوبرکي **۵۰۵**تنه دکابل اداري کارکونکي دمجاهدینوسره یوځای شوي دي.

نومبرکي **۵۹۲**تنه پوځیان، پولیس اواربکیان دمجاهدینوسره ملګري شوي دي.

همدارازدتېرکال په وروستۍ میاشت (ډسمبر) کي **۲۷۲**تنه پوځیان، پولیس اواربکیان دکرزي دګوډاګۍ اداري څخه رابیل شوي اوداسلامي امارت دمجاهدینوسره یوځای شوي دي.

په تېر(۲۰۱۳ز)کال کې شپږزره یوسل ونولس ( ۲۱۱۹)تنه با احساسه هیوادوال چې دنیوا کګروځوا کونوسره یې په یوا وبل ډول کارکاوه او همدارازدکرزي په ګوډاګي اوفاسدرژیم کې یې دندي درلودې ،پرخپل دغه عمل پښېمانه شول او د اسلامي امارت سره یوځای شوي دي.

د اسلامي امارت سره یوځای شوو هیوادوالو مختلفه النوع لویې اوورې وسلې ،وسایل ،مخابرې ،وسایط اویوزیات شمېر مهمات مجاهدینو ته سپارلي دي .

دکابل دمنفوررژیم څخه راجلاشوو هیوادوالو د اسلامي امارت له مسؤلینو سره ژمنه وکړه چي نور به دخپل ددین اووطن دخارجي اوداخلي مزدورانو سره هیڅ رازتعلق نه ساتي ،دخپل مظلوم ولس او مجاهدینو ورونو سره به همکاري کوي ،ترڅو لوی خدای جل جلاله ژرترژره زموږله ویاړلې خاوري څخه دکفر،فسق ،،اشغال ،فحشاءاوګمراهیو کرغېړن تغرټول کړي او دمسلمانانو دخوښي یوسوچه اسلامي واکمني رامنځته کړي چي دټول افغانان پرې راټول شي.

د اسلامي امارت مسؤلینو بالخصوص ددعوت ،ارشاد ،جلب اوجذب کمیسیون مشرتابه دوی ته هرکلی ووایه ،انعامونه اوجایزې یې ورکړې اوددوی همدانیک اقدام یې ډېروستایه چي دیرغلګرواولاسپوڅي رژیم څخه یې راووتل اودافغانستان اسلامي امارت دمجاهدینو سره یې خپل پیوستون اعلان کړ.

که څه هم یرغلګرو ،دکابل اداري اوکرایه کړي میډیایې دنوروکلونو په شان په تېرکال کې هم ډېر ښکرورد رواغ وویل خونه یوازي داچي دوی ته یې څه ګټه ونه کړه بلکي لاډېریې نړیوال او افغانان په ځان پوري وخندول.

دکابل اداري څخه په یوه کال کې ددومره لوی شمېر(۲۱۱۹) پوځي اوملکي چارودکارمندانو رابیلیده ښېله شکه په دغه رژیم باندي یوسترګوزاردی، داسي ګوزارچي هیڅ ډول یې نشي جبیره کولای، ځکه همدامنفوررژیم له یوې خوادداخلي چاودون سره مخ دی اوله بلي خوادا اسلامي امارت دهراړخیزوفعالیتونو او داتلو مجاهدینو دموثروبریدونو سره .

# دوحشتونو کیسې

## زابل ته تللې پلاوي څه اوریدل ؟

دروان ۲۰۱۳میلادي کال د۱۰میاشتې په ۲۴ تاریخ دخارجي او اربکي جنایتکارانو له خوا دزابل ولایت دمرکز مربوط سرخوګان، سورکي تنګي، ډوری، لودین ،پاتوزي، کښته او پورته هوتک ،ملایان ،نواباد کلیو باندي ددوئ دوحشت وروستنی راپور:

ددې لپاره چي دکرزي داداري دخپلسرو لنډغرو اوخارجي حیوان صفتو جنایتکارانو جنایتونه او غیر انساني چلندنور هم خلکو ته رسوا شي داسلامي امارت یو باصلاحیته څلور کسیز هیأت چې دمحترم حاجي ادریس په مشرۍ دکره معلوماتو درا غونډولو په موخه نوموړې سیمې ته لیږل شوی وو بیرته را ستون او دا معلومات یې دمورچل لوستونکیو ته له ځانه سره راوړي !چې البته دا سانتیا لپاره مو دپوښتنو اوځوابونو په بڼه خپرېدو ته چمتو کړ !

**اداره**

محترم حاجي صاحب که لومړی ځان را وپېژنې !

ځواب: الحمد لله رب العلمین والعاقبة للمتقین والصلاة والسلام علی قائدالمجاهدین واصحابه المکرمین وبعد :زمانوم حاجي محمد ادریس دی ، داسلامي امارت یوغړی اودمجاهدینو یوخدمتګار یم.

پوښتنه : ویل کیږي چي تاسو دڅونورو ملګرو سره دزابل ولایت هغو مرکزي سیموته تللي یاست،چي څه موده وړاندې خارجي یرغلګرو او دهغوئ ګوډاګیانو درې ورځې مسلسل

دنومونږ سیمي پر بې دفاع او مظلوم اولس دالوتکواو ټانګونو غوبل جوړ کړی و، که ددې وحشت په اړه معلومات را کړئ

ځواب: دزابل ولایت چې دامریکایي یرغل نه را پدیخوا یې تر نن پوري دیرغلګرو په خلاف دجهاد سنګر همدا اسي تود ساتلی، چې دغه سیمه یې بیا دبل هرځای په نسبت دسوونو مجاهدینو دګشت او ګذر مرکز بللای شو، که دروسانو دیرغل په وړاندي و، نوهم همدا سیمه وه، چې په ور خیرمه سورغر کې یې دمجاهدینو کیمپونه وو، که اوس ده هم دمجاهدینو دتګ راتګ سیمه بلل کیږي، چې په هرو څو ورځو کې دکابل کندهار پر لویه لاره دوهل شویو کار وانونو غنیمت شوي موټر او اسیران شوي عسکر له دې سیمې نه تیریږي، نو همدا دلیل دی چې کله دهوا او کله دځمکې له لاري ور باندې دښمن چاپه (ناځاپي یرغل) را وړي او اولسي وګړي یې ځوروي، چې دتیر په څیر یې دا ځل هم دخپلو وژل شویو جنایت کارانو کسات له همدې اولس نه واخیست

پوښتنه: که راته وواياست چې تاسو کومو سیمو ته ورغلئ او دموضوع په اړه مو له چاسره ولیدل ؟

ځواب: موږ هغو کلیو ته چې پدې ناروا او ظالمانه عملیاتو کې دردیدلي، شکنجه شوي ،وهل شوي، ویشتل شوي او بندیان شوي وو، ورغلو، او ددوئ له خولې نه مو نومونږي کره معلومات را ټول کړل، چې هغه په لاندې ډول دي:

دښمن لومړی دورځې له پیلیدو سره سم دکشفي لو یو الوتکو، جیټ او څو ډوله هلیکوپټر و په مټ فضاء تر خپل کنترول لاندې را وستله، چې ددوو ساعتونو لپا ره یې دهوا له لارې دا وحشت جاري ساتلی وو، تر څو چې ور ته له زابل مرکز کلات نه یو لوی کتار چې تعداد یې لسګونو ټانګونو او موټرو ته رسیده را ورسید، او دخاد مرستیال جمعه ګل یې مشري کوله ،ټوله سیمه یې چې شاوخوا شل کلیو ته رسیږي، تر خپلې محاصرې لاندې ونیول، چې دخلکو په تړلو، چور او تالان یې لاس پوري کړ او دخلکو شخصي شتمنۍ یې لوټ کړي، دملایانو په کلي کې یې دنواب موټروان دکور تلتکان وسوځول، دکشمشو له ګونیو یې مورچې جوړې کړې او له کورونو نه یې دحلالو شویو څارویو غوښې یو وړلې، دهر چا چې به نوی پالنګ و، یا به یې په کور کې کوم بل نوی شئ و، هغه به یې ورته ماتوو،

دملایانو له کلي یې دکلیوالو ۸موټرسایکل ، له پاتوزو یې ۸موټرسایکل ،له لودینو یې ۱۳موټرسایکل، له سرخوګان نه یې ۹ موټرسایکل،له نواباد او ډوری نه یې یو یو ، له سُرکي تنګي نه یې ۷موټرسایکل، له کبنته هو تکو نه یې ۹ موټرسایکل، او د سر له هو تکو یې ۵موټر سایکل را وایستل او ویې سوځول ،چي دا ټول دخلکو شخصي موټر سایکل وو ، ځکه دا سیمه له بازار نه لیرې ده، او تقریبا دټولو خلکو دتګ راتګ وسیله موټر سایکلان دي.

ددې نه علاوه یې دپاتوزو دکلي دبرات شا زوی سلیمان شاه په ډزو شهید کړ، بیس ته یې یووړ او هلته یې دده خیټه وڅېرله ، د پوسټ مارټم په پلمه یې ورڅخه ینه او زړه ایستلي و، او پدې ځیرې او بدحالت کې یې اقرباوو او خپلوانو ته وسپاره ،همداسې یې دعبدالرحمان زوی عبدالستار زخمي کړ، چې دکلات په شفاخانه کې تر ډیره وخته بستر و،

نومورې سیمې ته دلو دینو دکلي یو دکاندار سلطانګی دشیر محمد زوی له هو تکو نه ، هجرت الله دشاولي زوی ،طاؤس دحمدالله زوی او د سرکي تنګي صدیق الله چې دواده لپاره یې کوتوني را وستي وو، بوتلل او له ملایانو یې عبدالقادر دحاجي عبدالرؤف زوی چې دکور مشر وو او دلوی مسجد ملا امام مولوي امان الله او ملاقاسم دحاجي فیض الحق زوی ،دخپل کلي دیو کمکي مسجد ملا امام او ملا محمد رضادحاجي سید عبدالله زوی ،دلونګ دکلي ملا امام چې له خپلو کورونو نه لمانځه ته تلل او دخپلو ځمکو کار او رزوګار یې هم کاوه ،یووړل او له ډوری نه یې یو مشهور لیونی ساعت ملوک وړی، چې داکسان تر نن پوري دکلات په محبس کې بې له کوم جرم نه ددې ظالمانو په بندیخانو کې تر شکنجو لاندې شپې او ورځې سباکوي، چې کله دسیمې سپین ږیري ورشي ،نو دغلامې ادارې مامورین ورته وایي چې دا مجرمین دي او نه یې در خوشې کوو...

# داسلام غزوات اوسرایا

**نولسمه برخه**

**ابو ظهیر**

# احد جنګ

احد دمدينې منورې ديوه غره نوم دی، کوم چې له مدينې نه کم وزيات دوه ميله لرې پروت دی، ورته احد په دې وجه وايي: چې له نورو غرونو نه "متوحد" يعنې يواځې او جلادی( البدايه والنهايه ۴ټوک ۹مخ)

ابن سعد په طبقات الکبری کې ليکلي : احد جنګ له هجرت ۳۲مياشتې وروسته،د شوال مياشتې په ۷مه دشنبې په ورځ شوی ( ۱ټوک ۲۲۷مخ)

داحد جنګ لاملونه:

بدر جنګ ته چې قريش د اسلام ماتولو د کوم شوم عزم په بدر کې راغلي وو، ناڅاپه قدرت دهغوئ دغه ارزو پوره نکړه، پخپل هوډ کې په پاتې راتلو يې ټول پلانونه او تدبيرونه له خاورو سره خاورې شول ، اسلام دمعمول سره سم دخپلې ارتقاء او پراختيا لرې په غځولو ورځ تر ورځې خپله دايره پراخوله ، دمکې کافرانو ته دا کار دزغملو وړنه و ، له دې وجې هم هغه لاملونه چې دبدر جنګ وو، هغو په احد کې هم کاري رول لاره.

دبدر جنګ يو قوي لامل چې د"عمروبن حضرمي" قتل هم و، اوس دقريشو له ډلې نه اويا تنه وژل شوي وو، زياتره دهغوئ سرداران ،مشران او رهبران ول، دې ته په کنو ټول قريش دغچ او انتقام له غوسې ډک وو ، ابوسفيان دغه مهال دقريشو مشر رهبرو ، هغه سوګند وخوړ ، څو مې دبدر مقتولانو غچ نه وي اخيستی ، تر هغه پورې به نه غسل وکړم،نه به په سر پورې تيل کړم، سوګند پوره کولو په موخه هغه د۲۷۰ سپرو سره يوځای دشپې پټ په مدينه منوره ناڅاپه يرغل وکړ،چې شپه يې له يهودي سردار سلام بن مشکم" سره تيره کړه، سهار لمر راختونه وړاندې دمدينې منورې پر مال څر چې له ښاره درې ميله لرې پروت و، حمله وکړه، هلته يې يو انصاري شهيد اوځو کورونه او ونې وسيزلې ، په منډه بيرته له سره ملګرو وتښتيده ، په تعقيب يې رسول الله (ﷺ) دصحابه وو سره تر يوځايه ووت، خو په لاس ځوک ورنغلل.

بل په قريشو اقتصادي کلابندې دوخت په تيريدو ټينګيده ، له بدر جنګ وروسته په ساحلي سيمو کې ميشت قبايلو هم مسلمانانو سره تړونونه وکړل، په دې سره په قريشو دشام لار وتړل شوه ، هغوئ دې ته اړشول چې خپله سوداګرې يواځې تر عراق پورې محدود کړي ، خو دعراق لار هم خوندي نه وه، يووارهغوئ دنجد له لارې يوه قافله عراق ته وليږله ، هغه دزيد بن حارثه (رضي الله عنه) په مشرۍ ليږل شوي و مسلمانانو ونيوه ،ټول مالونه يې ترې غنيمت کړل، قريش پوهيدل ، که حالت هم داسې دوام وکړي ، نو دوئ به له اقتصادي پلوه يومخ ووژل شي.

څنګ چې نن سبا پروپاګند اوتبليغ لوی اهميت لري، له راډيو، نشراتو، ورځپاڼو اوميډيا نه دتبليغ اوپروپاګند دوسيلو په حيث کار اخستل کېږي ، هغه مهال عربو دپروپاګند اوتبليغ دوسيلې په توګه له شعروشاعرۍ کار اخيست ، قريشو پروپاګند لپاره، دوه مشهور شاعران "عمروجمحي" او"مسافح" غوره کړل، هغوئ پر ټولو قبايلو وګرځېدل، خلکو کې يې دمسلمانانو پر ضد جوش او ولوله پو کړه ، مدينه منوره کې دننه يهودي "کعب بن اشرف" چې له مسلمانانو سره يې ډېر بغض اوعناد لاره دمسلمانانو اورسول الله (ﷺ) پرضد په شعرونو کې پروپاګند کاو ، تردې چې هغه په دې هم بسيا ونکړه او مکې ته لاړ ، هلته يې پخپلو شعرونو کې قريش انتقام اخستو ته وهڅول.

مشرکانو دبدر نه په ستنيدو ، دهغه قافلې مال چې ابوسفيان دساحل په غاړه بيولې وه اوله مسلمانانو يې وژغورله ،ټوله پانګه يې دارالندوه کې امانت او خوندي کړې وه،داچې دبدر دستر هزيمت اوشکست زخمونه دهر کافر په سينه کې تازه وو، دکومو خلکو چې په بدر کې پلارونه، ورورنه ، وريرونه اوخپلوان وژل شوي وو،دهغوئ ژړه ګانو اوفريادو په خلکو کې نوره هم جذبه پيدا کړه.

ابوسفيان بن حرب ، عبد الله بن ابی ربيعه ، عکرمه بن ابی جهل حارث بن هشام ،صفوان بن اميه حويطب بن عبد العزی اونور سرداران راټول شول اوپرېکړه يې وکړه دقافلې کوم مال چې په دارالندوه کې امانت خوندي دی ، دهغه اصلي پانګه دې په شريکانو وويشل شي اولاسه ته راغلې نفعه( ګټه) دې دمحمد (ﷺ) سره په کيدونکي جنګ ولګول شي ، څو له مسلمانانو نه مونږ دخپلو پلرونو، ورونو، ترونو ، اولادونو اوخپلوانو دوژلوغچ واخلو، په غونډه کې ټولو ناستو خلکو په يوه غږ ددې راې ملاتړ کړ، په دې سره هغه ټوله ګټه چې پنځوس زره دينا ره وه، دجنګ په چارو اوتياريو ولګول شوه.دياونې وړده چې دقريشو ددې يادو سردارانو ځامن ،پلرونه او ورونه په بدر کې وژل شوي وو، دابوسفيان ځو حنظله، دعکرمه پلار ابوجهل د حارث بن هشام ورور ابوجهل بن هشام ،صفوان بن اميه پلار اميه دمسلمانانو په لاس وژل شوي وو، له دې وجې پرته دځنډه يې ياده پرېکړه وکړه ( زرقانې ٢ټوک ٢٠مخ سيرة المصطفی ١ټوک ٥٢٧مخ)

علامه ابن سعد ليکلي : لومړی دقريشوڅوته سرداران ابوسفيان ته لاړل او ور ته ويې ويل :مونږ په خوشالۍ تيارېو چې د قافلې له درکه کومه نفعه ترلاسه شوي ، هغه دمحمد (ﷺ) سره کيدونکي جنګ لپاره جنګې توکي اووسايل واخلئ، ابوسفيان وويل لومړی سړی زه يم چې دا رايه منم او دعبد مناف اولاد هم ما سره ملګري دي ( ١ټوک ٢٢٧مخ)

په دې اړه الله (ﷻ) لاندې ايت نازل کړ :

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ ۗ وَالَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ ﴿٣٦﴾ (الانفال ٣٦)

بيشکه کافران خپل مال لګوي، څو خلک دخدای له لارې وګرځوي ، پس نورمال به هم ولګوي ، خو دا ټول به په دوئ حسرت او افسوس وي ، په پای کې به مغلوب هم دوئ وي.

قريشو ټولو عربوته استازي واستول له هغوئ يې مرسته اوکومک وغوښت ، ځينې ورسره مرستې اوملګرنيا ته، تيار شول، هغوئ پوره مجهز ځانونه حاضر کړل ، قريشو له ځانو سره دميرمنو په بوتلو هم سلا او اتفاق وکړ، څو هغوئ جنګياليو ته دبدر مقتولان ياد کړي او ورته "رجزيه" اشعار ووايي، په دې توګه ددرې زره کسانو لښکر جوړ شو، پکې ٧سوه کسانو په زغرو پوښلي وو ،دوه سوه په اسونو سپاره وو، درې زره اوښان وو اوپنځلس ميرمنې وي ، ټول دابوسفيان په مشرۍ کې دشوال په ٥مه له مکې روان شول ( طبقات ١ټوک ٢٢٧مخ زرقانی ٢ټوک ٢٠مخ)

رسول الله (ﷺ) ته دقریشو له ارادې خبر ورکول:

عباس بن عبد المطلب چې دغه مهال په پټه ایمان راوړی و، ژر یې په یولیک کې رسول الله (ﷺ) ته دقریشو دا ټولې خبرې اوا رادې ولیکلې، رسول الله (ﷺ) له نورو مخکې سعد بن الربیع ته دعباس لیک وښود، یهودانو او منافقانو هم په مدینه منوره کې دا ړوونکې خبرونه او افواهات خپرول.

د رسول الله (ﷺ) خوب لیدل او صحابه وو سره مشوره:

رسول الله (ﷺ) دخبرونو معلومولو په موخه سملاسي د"فضاله" ځامن "انس او مونس" (رضي الله عنهما) دشوال په ٥مه نېټه دپنجشنبې په ورځ واستول، هغوئ بېرته راغلل او خبر یې راوړو، چې قریشي لښکر مدینې منورې ته څېرمه "عریض" نومې سیمې ته رسیدلی، دلښکر دشمیر معلومولو لپاره رسول الله (ﷺ) "الحباب بن المنذر بن الجموح" (رضي الله عنه) ولیږه، "الحباب بن المنذر بن الجموح" (رضي الله عنه) لاړ، آن لښکر ته دننه ننوت، هغه دلښکر دقیق شمیر معلوم کړ، بیا راغی رسول الله (ﷺ) یې د قریشو لښکر له شمیره خبر کړ.

دجمعې په شپه "سعد بن معاذ" اسید بن حضیر او سعد بن عباده (رضي الله عنهم) وسله په لاسو راغلل، مسجد کې د رسول الله (ﷺ) د دروازه کې ترسبا په پهره ودریدل، هم داشان دمدینې منورې ښار په ټولو جوانبو، اطرافو او لارو یې ترسبا پهرداران کینول (رضي الله عنهم) (طبقات ١ټوک ٢٢٧مخ)

دجمعې په سهار رسول الله (ﷺ) صحابه ځانته وغوښتل، دانصارو او مهاجرو مشرانو وویل: په مدینه منوره کې به پاته شو او مقابله به وکړو، لیکن هغه ځوانانو چې په بدر کې نه وشریک شوي او دشهادت په جذبه سرشار ول ویل: دمدینې څخه بیرون دې په قریشو حمله وشي.

په همدې شپه کې رسول الله (ﷺ) خوب ولید چې زغره یې په تن کړي، یو غویه ذبح کېږي، رسول الله (ﷺ) ددې تعبیر دا وکړ، چې دزغرې په څېر مدینه منوره خوندې ده، او دغویه په ذبح کولو کې اشاره ده چې ځما په صحابه وو کې به ځینې کسان شهیدان شي، له دې وجې ځما رایه داده چې مدینه کې دننه تم شو او دفاع وکړو، په خوب کې مې داهم ولیدل چې ما توره وښوروله، دې سره دتورې مخکېنۍ برخه ماته شوه، بیا مې هغه (توره) دویم وار وښوروله، له وړاندې نه ډېره ښه جوړه شوه، ددې تعبیر دادی چې صحابه په منزله دتورې دي، کوموچې د رسول الله (ﷺ) په دښمنانو بریدونه کول، صحابه جهاد ته بیول په منزله دتورې ښورولو وو، یو وار یې وښورول یعنې په احد غزوه کې رومبی برخه ماته شوه، یعنې ځینې صحابه شهیدان شول، بیا هم دا توره یې په نورو غزاګانو کې وکاروله، نو له پخوا نه زیاته تېره شوه او په دښمنانو ښه وچلیده.

د رئس المنافقین عبد الله بن ابی بن سلول څخه یې هم دیوه تجربه کار او هوښیار سړي، په توګه مشوره واخسته، هغه وویل: تجربو ښودلې چې هر کله هم دښمن په مدینه باندې حمله کړې او دمدینې خلک دننه په ښار کې پاته شوي او ددښمن دتیرې یې مقابله کړی، په پای کې فتحه او بری دمدینې خلکو ته په برخه شوی او هر کله چې بیرون وتلي، ناکام راستانه شوي، یا رسول الله (ﷺ)! ته هم دمدینې څخه بیرون مه وزه، په خدای سوګند هر کله چې موږ دمدینې څخه بیرون وتلي یو دتکلیفونو اوله ستونزوسره مخ شوي یو، ته دمدینې لارې او اطرافونه وتړه، که بالفرض دښمن ښار ته ننوتو، نارینه به یې په تورو مقابله وکړي، ماشومان او میرمنې به یې به له بامونو څخه په کاڼو ولي، او که له بیرون څخه بیرته ستون شو، دا بیا زموږ هدف دی (طبري ٣ټوک ١١مخ)

خوځینې اکابرو اوځوانانو په دې ټینګار درلود چې له مدینې بهر دې په دښمن برید وشي، هغوئ ویل: "یا رسول الله (ﷺ)! مونږ ددغسې ورځې غوښتونکې وو،له خدایه مو په دعا ګانو غوښته، خدای هغه ورځ را وستې ، او لار هم لږده "

حضرت حمزه ، سعد بن عباده اونعمان بن مالک عرض وکړ: دالله رسوله! که مونږ په مدینه کې پاته شواو په مقابله مو بسیا وکړه دښمن ته به مونږ بزدلان ښکاره شو.

حضرت حمزه وویل: والذی انزل علیک الکتاب لا اطعم الیوم حتی اجاهدهم بسیفی خارج المدینة (البدایه والنهایه ۴ټوک ۱۲ مخ)

سوګند دی په هغه پاک ذات چاچې په تا کتاب نازل کړی دی ، ترهغه پورې به ډوډۍ ونه خورم، څوچې مې له مدینې بیرون دښمنانو سره په توره جهاد نه وي کړي.

نعمان بن مالک انصاری وویل: یارسول الله لا تحرمنا الجنة فَوالذی بعثک بالحق لادخلن الجنة

ژباړه: دالله رسوله! مونږ دجنت نه مه محرومه وه ، سوګند دی په هغه ذات کوم چې ته په حق رالیږلی یې، زه به خامخا جنت ته داخلیږم

رسول الله (ﷺ) ورته وفرمایل په څه ؟

نعمان وویل: لَانی اشهد ان لا اله الّا الله وانک رسول الله ولا اَفِرُّ یوم الزحف

ژباړه: په دې وجه چې زه ګواهي ورکوم چې دالله پرته هیڅ بل معبود نشته ، اوبیشکه ته دالله (ﷻ) برحق رسول یې، اوزه په جنګ کې هیڅکله تښتیدلی نه یم.

په یوبل روایت کې دا الفاظ راغلي: لَاَنِی اُحب الله ورسوله. په دې وجه چې زه دالله اودهغه رسول سره محبت لرم.

رسول الله (ﷺ) ورته وفرمایل: صدقت: تا رښتیا وویل.

بیا رسول الله (ﷺ) خلکوته دجمعې لمونځ وکړ، وینا(خطبه) یې وکړه ، صحابه ووته ته یې دجهاد ترغیب ورکړ، او وي فرمایل: څو تاسي صبر کوئ دخدای مرسته به له تاسو سره وي ، ددښمن دحملې په وړاندې یې ټولو ته دځانو نو تیارولو حکم وکړ، په دې سره خلک هم خوشال شولاو دمازیګر لمونځ یې ادا کړ

## زغره په تن اووسله په لاس راوتل:

دمازیګر لمانځه وروسته رسول الله (ﷺ) خپلې مبارکې حجرې ته ننوت، حضرت ابوبکر او عمر (رضي الله عنهما) هم ورسره حجرې نه ننوتل، دابن سعد په روایت هغوئ دواړو رسول الله (ﷺ) پګړۍ وتړله، هم دواړو ورته زغره ور واغوسته، خلک بهر په صف کې درسول الله (ﷺ) وتلو ته انتظار وو.

په دې ځنډ کې سعد بن معاذ او اسید بن حضیر (رضي الله عنهما) خلکوته وویل:

تاسو رسول الله (ﷺ) له ښاره بهر وتلو ته اړ کړ، حال دا چې په رسول الله (ﷺ) وحی نازلیږي،ښه داوه چې رسول الله (ﷺ) مو خپلې منشاء او خوښې ته پرېښودی وای

په دې کې رسول الله (ﷺ) مسلح له حجرې را بیرون شواو دوه زغرې یې اغوستې وې ، صحابه وو (رضی الله عنهم) عرض وکړیا رسول الله ! مونږ په ناسمه توګه په تا زیات اصرار وکړ (چې له ښاره بیرون دې پر دښمن حمله وشي) مونږ ددې حق نه لاره، ته چې هره یوه مناسب بولې ، هم هغسې وکړه ، یعنې یواځې پخپله رایه عمل وکړه ( طبقات ابن سعد ۱توک ۲۲۸مخ،سیرة المصطفی ۵۳۰مخ)

رسول الله (ﷺ) وفرمایل: دهیڅ پیغمبر لپاره مناسب نه ده چې هغه زغره په تن کړي او بیا یې بیرته وباسي، ترڅو چې الله (جل جلاله) دهغه او ددښمن ترمنځ فیصله نه وي کړې ، تاسي اوس هغه څه کوئ چې زه تاسو ته دهغه حکم کوم ، دالله (جل جلاله) په نوم روان شئ ،پوشئ ترڅو چې تاسي صابر او ثابت قدم وئ دالله (جل جلاله) فتحه اونصرت به تاسي سره مل وي.

**ځیرنه:**

د رسول الله(ﷺ) دا وینا چې دهیڅ پیغمبر لپاره مناسب نده، چې وسله په تن کړي اوبیا یې دجهاد کولو پرته کوزه کړي... دا حکم یواځې تر رسول الله (ﷺ) مخصوص نه و، دهر پیغمبر علیه السلام لپاره داحکم و، چې دوسلې په تن کولو وروسته ترهغه پورې چې جهاد ته نه وي لاړ، دوسلې ښکته کول جایزندی، علماء وایي له دې څخه دا هم جوته شوه چې په شروع سره دنفلي اومستحب عمل سرته رسول واجب ګرځي.

دلته رسول الله (ﷺ)درې نیزې وغوښتې اودرې بیرغونه یې جوړ کړل، داوس قبیلې بیرغ یې اسید بن حضیر ( رضی الله عنه) ته ورکړ، دخزرج بیرغ یې الحباب بن المنذر( رضی الله عنه) ته ورکړه، په بل روایت سعد بن عباده (رضی الله عنه) ته یې ورکړ ، دمهاجرینو بیرغ یې علی بن ابي طالب (رضی الله عنه) ته په بل روایت مصعب بن عمیر (رضی الله عنه) ته ورکړ اوعبدالله بن مکتوم (رضی الله عنه) یې په مدینه منوره دخپل خلیفه په توګه وګوماره.(طبقات ۱توک ۲۲۸مخ)

د رسول الله(ﷺ) روانېدل:

ددې وروسته رسول الله (ﷺ) خپله اس ته پورته شو، لاس کې یې نیزه وه، مسلمانانو په زغرو او وسلو سمبال ول، سل ته په زغرو پوښلي وو،دواړه سعدین ( سعد بن عباده اوسعد بن معاذ رضی الله عنهما) چې زغرې یې په تن وې، له رسول الله (ﷺ) مخکې په منډه روان ول، نورخلک د رسول (ﷺ) ښي کین اوترشا تلل ، کله چې له مدینې منورې بیرون "الشیخین" ته ورسیدل، هلته رسول الله (ﷺ) لښکر ته وکتل، ورته پکې لوی شمیر داسي وسلوال هم نظر ورغلل چې هغوئ له څېرو او وښتانو نورڅوک ښکاریدل، وي وپوښتل هغوئ څوک دي؟ خلکو ویل: د"ابن ابی" یهودي حلیفان دي، رسول الله (ﷺ) وفرمایل: دمشرکانو په ضد له مشرکانو مرسته مه غواړئ، هم دلته رسول الله (ﷺ) چې څوک ستنول هغو یې له هدې ځایه بیرته ستانه کړل، او څوک یې بیول، هغوئ یې بوتلل، په بیرته ستنوونکو کې ځینې کم عمر هلکان یې هم بیرته ستانه کړل، دهغوئ دا نومونه دي:

۱–اسامه بن زید (رضی الله عنه) ۲–زید بن ثابت (رضی الله عنه)۳–ابوسعید خدری (رضی الله عنه)۴–عبد الله بن عمر(رضی الله عنه) ۵–اسید بن ظهیر(رضی الله عنه) ۶–عرابة بن اوس (رضی الله عنه)۷– براء بن عازب (رضی الله عنه) ۸–زید بن راقم (رضی الله عنه) نوربیا...

د اسلامي نړۍ مفکر عالم مولانا سید ابوالحسن علي ندوي (رح)
ژباړه: شهاب "منصور" ۶ برخه

# المرتضی کرم الله وجهه

## دامیر المؤمنین علی ابن ابي طالب رضي الله عنه کورنی ژوند لیک

## او په راتلونکي یې اغېزې:

### داسلام په تلاش مکې ته له راتلونکو سره مرسته:

هغه خلک چې دحق او رښتیا په تلاش او موندلو پسې مکې تـه راتلـل ، علی بـن ابی طالـب (رضي الله عنه) به دداسي خلکو مرسته او لارښودنه کوله ، تر رسول الله (صلی الله علیه وسلم) به یـې هغـوئ بیـول ،ددې لپاره الله (جل جلاله) نوموړي ته ځانګړی صلاحیت او ذهانت ورکړی و، پـه کـوم کې چې بنـو هاشـم ترنورو ممتاز وو، امام بخاري (رحمه الله) پخپل سند له حضرت عبد الله بـن عبـاس (رضي الله عنه) نـه د ابـو ذر غفارې (رضي الله عنه) دایمان راوړلو کیسه روایت کړې:

کله چې ابوذر (رضي الله عنه) درسول الله (صلی الله علیه وسلم) له بعثتـه خبـر شـو، خپـل ورور تـه یـې وویـل: تـه! ددې وادي (مکې) لورته لاړشه او دهغه سړي په باب معلومـات راوړه، کـوم چې ځـان دالله (جل جلاله) رسـول بولي او دعوه لري چې له اسمانه ورته خبرې (وحی) راځي ،ته یې خبروته غوږ شه، بیا راشـه مـا خبـر کړه ، هغه ( دابوذر ورور ) مکې ته لاړ، هلته درسول الله (صلی الله علیه وسلم) پـورې ورسـید ، خبـرې یـې واریـدې، بیرته راغی، ابوذر ته وایې: ما هغه ولید ، دښو اخلاقو ښودنه کوي ،څه چې وایـي هغـه شـاعري نـده ، ابوذر (رضي الله عنه) ویل : ما چې کوم څه غوښته ، تا هغه رانه وړل ، بیا دځـان سـره یـې دسـفر توښـه او داوبـو یو مشک واخست خپله مکې تـه لاړ ، حـرم شـریف تـه ورسـید ، رسـول الله (صلی الله علیه وسلم) نـه پیـژني ، کوښـښ کوي چې له قافیې او اندازې یې ووپیژني، شپه شوه او هم هلته ویده شو.

کله چې علی (رضي الله عنه) ولیده، پوه شو، چې داڅوک نوی له بیرونه راغلی ، ورپسـي غلـی روان شـو، ابوذر چا سره دخبرو کولو پرته حرم شریف ته ننوت ، هم هلته انتظار و، تردې سباشـو ابـوذر خپلـه توښه او مشک مسجد حرام ته راوړو ، ټوله ورځ بیا تیره شوه ،خو رسول الله (صلی الله علیه وسلم) یې ونه لیـده ، وربانـدې بیا ماښام شو ، ابوذر دتیرېشان څملاست ، علی (رضي الله عنه) تیر شـو ،هغـه وویـل: ایا تـرواسـه

دې سرې ځان ته دهغـه شخص ځـای معلـوم نکـړ ،چې هلتـه لاړ وای اوځملاستلی وای؟ ورغی ځان سره یې بوته ، تردې مهاله ، له یوبل پوښتنه نـه کـوي ، درې یمـه ورځ هـم تیـره وشوه، علی (رضي الله عنه) ور سره یوځای و، بالآخر علی (رضي الله عنه) تـرې و پوښتل :ایا ویـلای شي چې دلتـه دڅـه پسي راغلی یې ؟ ابوذر وویل: که ما سره وعده او سره قـول کوي چې تـه بـه ماتـه لار ښوونه کوي ، خبروم دي؛ علی (رضي الله عنه) دهغه شرط اومانه، وایه څـه غواړې ؟ ابـوذر ورتـه خپـل راز ووایـه؛ علی (رضي الله عنه) ویلي : داخبره رښتیاده، هغه له شک پرتـه دالله رسول دی ،کلـه سهار چې لـه خوبـه ویښ شي ،بیا ما سره لاړ شه ، که په لار کې ما کوم خطر لید ، زه به ودریـږم، داسي لکـه استنجا کولـو ته ګرځم ، کله چې تلم، ته په ما پسي راځه ، چیرته زه تلم هلته ته هم راځـه ، ابـوذر (رضي الله عنه) هـم داسي وکـړل ، دعلـی (رضي الله عنه) تـر شا، تـه؛ آن رسـول الله (صلی الله علیه وسلم) تـه ورسـید ، درسـول الله (صلی الله علیه وسلم) خبرې یې واوریدي اوهم هغه وخت یې ایمان راوړ .(الجامع الصحیح للامام البخاری باب اسلام ابی ذر، کتاب مناقب الانصار)

**ځانګړی او ستر ویاړ**:

علی (رضي الله عنه) وایي :یوه ورځ زه اورسول الله (صلی الله علیه وسلم) له کوره ووتو، دکعبې دروازې تـه راغلـو ، رسـول الله (صلی الله علیه وسلم) ماتـه دکیناسـتو امـر وکـړ ، بیـا یې ځمـا پـه اوږو پښـې کیښـودي ، ودریـده، ماتـه یې ویل :پورته شه ! خوځما دکمزورۍ په حسولو یې و فرمایل: کینه ! خپله رسول الله (صلی الله علیه وسلم) کیناسـتو اوماته یې پخپلو اوږو دناستي امر وکړ ، کله چې ما همداسي وکـړل ،رسـول الله (صلی الله علیه وسلم) ځمـا د لانـدې پورتـه شـو ماتـه، داسي بریښیده اودومـره لوړپورتـه شـوم لکـه اسمان تـه خیـږم ، دکعبې بـام تـه وختم، هلته دپیتلو او وسپني جوړ بوت و، هغه مې لـه ځایـه یوخـوابـل خـوا وښـوراوه، تـردې پخپـل کابو کې مې راوست ، رسول الله (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل : ښکته یې غـزار کـړه ، ماښکته غـزار وکـړ ، داسي ټوټې ټوټې شو، لکه دښیښې لوښی چې مات شي ، بیا له هغه ځایـه راښکته شـوم ،اومـونږ دواړه (زه اورسول الله صلی الله علیه وسلم)تیز ، تیز دکورو نو شاته لاړو ،څو نور څوک مو ونه ویني.

څنګه چې دحاکم په مستدرک کې هم داخبره روښانه شوي ، چې دا کیسـه لـه هجـرت وړانـدې ده، خو هغوځینو سیرت پوهانو ته وهم شوی کوم چې دا وایي چې دا دمکې دفتحې وروسته واقعـه ده ، خو صحیح داده چې دا له هجرت وړاندې پیښـه ده ، علامـه برهـان الـدین حلبـی (زو کـړه ۹۷۵، مړینه ۱۰۴۴هق) پخپل مشهور کتاب "السیرة الحلبیة" کې لیکلي چې د علی (رضي الله عنه) دا ویـل : چې

زه او رسول الله (ﷺ) تیزبیرته لاړو ، څو مونږ څوک ونه وینې ، ددې ښکارندوي کوي چې دا دمکې دفتحې وروسته واقعه نه ده ( درې یم ټوک ۳۰مخ )

**هجرت:**

قریشو او قبایلي عربو ته داسلامي دعوت لړۍ روانه وه ، بل پلو دقریشو لخوا مخالفت او دښمني هم اوج ته رسیدلې وه ، بنو هاشمو سره مقاطعه اوپریکون اعلان شوی و، په شعب ابي طالب کې دبنو هاشم پنا غوره کول ، حبشو ته د حضرت جعفر بن ابي طالب او د یو لوی شمېر مسلمانانو هجرت کول ،طایف ته د دعوت لپاره درسول الله (ﷺ)تګ، دهغه ځای خلکو د ډیرناوړه سلوک اوبد چلند ښځه ډکه پېښه ، د اسراء اومعراج واقعه، دحضرت حمزه بن عبد المطلب اوحضرت عمربن الخطاب رضی الله عنهما ایمان راوړل ، دمکې په دننه او بیرون کې دزیات شمېر خلکو زړونوته دایما نې رڼا ننوتل او ایمان راوړل ، درسول الله (ﷺ) دفاع اوملاتړ ته سینه سپر نیونکي ابوطالب مړینه ، دام المؤمنین حضرت خدیجة الکبری (رضی الله عنها) وفات ، دقریشو له لورې ورځ ترورځې مخ په زیاتوالي اذیتونه اوتکلیفونه ، درسول الله (ﷺ) او مسلمانانو پر ضد دومره لوې حربې او دسیسې جوړول ، کومو چې هیڅ پای نه لاره، په دې وخت کې د یثرب قحطان قبیلې دوه لویو ښاخونو ( اوس اوخزرج ) ایمان راوړل، په لومړۍ عقبه اودویمه عقبه کې له رسول الله (ﷺ) سره دهغوئ بیعتونه ، په یثرب (مدینه منوره ) کې داسلام خپریدل، لوی شمیر مسلمانانو یثرب ته هجرت کول، تردې چې په مکه مکرمه کې درسول الله (ﷺ) حضرت علی او حضرت ابوبکر ابن ابی قحافه رضی الله عنهما پرته یواځې هغه مسلمانان پاته وو چې بندیان وو، یا په بل کوم ازمایښت کې ښکېل ول،قریش له دې امله زیات ویښ وو چې هسې نه رسول الله (ﷺ) مدینې ته لاړشي ، ددوئ له مونګلو ونه وځي ! ددې یادو ټولو واقعاتو تفصیل اسان نه دی او دحضرت امیر المومنین علی ابن طالب (رضی الله عنه) په سوانحو کې یې بشپړ راوړل ضرور نه هم دي ، ولې دیادو واقعاتو د ښه تفصیل ځای دسیرت کتابونه دي ، چې هغه پخپل ځای بې ساحله سمندر ته ورته دي ( دتفصیل لپاره دمصنف کتاب "السیرة النبویه "عربي یا نبی رحمت اردو )

په هرحال داسي حالات وو، آخر قریش دارلندوه کې راغونډ شول او په دې خبره ټول یو خوله شول چې د هرې قبیلې نه یو ،یو زړور سړی راواخلئ ، بیا هغوئ ټول دې یوځای شي او په رسول الله (ﷺ) داسي برید وکړي ، چې ټول یولاس ګرځیدلي وي ، په دې به یې دوینې پور ټولو قبایلو په

ذمه پریوزي ، دعبد مناف اولاد لره به په یوائې سر ګرانه وي چې له ټولو قبایلو دې غچ واخلي ، په دې وجه به هغوئ دجنګ همت ونکړي ، دارایه ټولو قبوله کړه او غونډه پای ته ورسیده.

الله (ﷻ) رسول الله (ﷺ) ددې سازش نه خبر کړ ، رسول الله (ﷺ) پخپله بستره حضرت علی (رضي الله عنه) ته دڅملاستو حکم وکړ او ورته وي فرمایل، تا ته څوک تکلیف نه رسوي! داخبره دومره آسانه هم نه وه، دنوموړي پر ځای که بل څوک وای، دې ته به یې زړه نه و نیولی ، مګر داچې په الله (ﷻ) یې په دومره لوړه درجه ایمان وای اوله رسول الله (ﷺ) سره یې دومره درجه محبت او دخپل ځان ځارولو تربریده، مېنه وای، درسول الله (ﷺ) په خبره هغه کامل یقین او بشپړ باور واو په رسول الله (ﷺ) یې دخپل ځان قربانولو جذبه درلوده ، حضرت علی (رضي الله عنه) ته داهم معلومه وه چې هر کله کا فرانوته دامعلومه شي، چې رسول الله (ﷺ) ددوئ له لاسو وتلی ، هغوئ دخپلو نفسونو دتسکین پخاطر هم درسول الله (ﷺ) په بستره ملاست سړی ټوټې ټوټې کړي.

لیکن حضرت علی (رضي الله عنه) له دې ټولو بې پروا و، دا یوه خبره یې هم پخپل خاطر کې رانه وړه، راغی درسول الله (ﷺ) په بستره څملاست اوپه ښه درانه خوب ویده شو.

**مواخاة :**

دابن سعد په "طبقات الکبری" کې راغلي :

رسول الله (ﷺ) دسهل بن حنیف سره د علی (رضي الله عنه) ورورې (موخاة) جوړه کړې وه .

ابن کثیر (رحمه الله) هم وایي : چې رسول الله (ﷺ) دحضرت علی او حضرت سهل بن حنیف ترمنځ مواخاة کړی و، ابن اسحاق اونور دسیرت اومغازیو لیکونکو په روایت : رسول الله (ﷺ) د خپل ځان اوعلی (رضي الله عنه) ترمنځ مواخاة کړی و، په دې اړه نور روایتونه هم راغلي ، په هغو کې ځینې روایتونه داسنادو له پلوه ضعیف دي اوځینې دمتن له پلوه کمزوري دي (البدایه والنهایه ۳ټوک ۲۳مخ)

په سنن الترمذی کې یو روایت دی، له هغه نه هم دا ثبوت کېږي چې رسول الله (ﷺ) خپل مواخاة له علی (رضي الله عنه) سره کړی و، دې حدیث ته امام ترمذی دحسن درجه ورکړې ، حضرت شاه ولی الله دهلوي (رحمه الله) په "ازالة الخفا اوتنویر العینین" دواړو کتابو کې دې روایت ته ترجیح ورکړې ده. نوربیا .....

# راغلي لیکونه

حکمت الله ځلاند

## له دیني مدرسو فارغ شوي استادان ولې په پوهنتونونو کې د تدریس حق نلري

د لوړو زده کړو وزارت د دې پرېکړې تر شا کوم راز پروت دی؟

له دیني مدرسو فارغ شوي استادان ولې په پوهنتونونو کې د تدریس حق نه لري؟

په دې ورځو کې د لوړو زده کړو وزارت، د کابل پوهنتون د شرعیاتو پوهنځي د وړاندیز او ټینګار پر بنسټ یو مکتوب صادر کړی، چې له مخې یې هغه دیني عالمان چې له بېلابېلو دیني مدرسو څخه فارغ شوي دي او بیا د لوړو زده کړو وزارت، د هغوی اسناد د لېسانس په کچه تثبیت کړي او یا یې د ازمویني له لارې هغوی ته د لېسانس په کچه اسناد ور کړي دي، د شرعیاتو په پوهنځیو کې د ماسترۍ د دورې د بشپړولو لپاره نه شي جذبېدلای.

دغه راز د دغه مکتوب له مخې هغوی په قضا او څارنوالۍ کې هم نه شي جذبېدلای او تر څنګ یې د شرعیاتو په پوهنځیو کې د تدریس حق هم نه لري او په دغو اسنادو سره یوازې په دولتي ادارو کې دنده تر سره کولای شي او یا هم په ښوونځیو کې د دیني مضامینو تدریس کولای شي.

خو د دغه راز اسنادو درلودونکي استادان او دیني علماء بیا پر دغه پرېکړه سخته نیوکه لري او وایي، چې که هغوی د شرعیاتو پوهنځي د لېسانس په کچه علمي سویه نه لري، نو بیا ولې وزارت هغوی ته اسناد ور کړي دي.

د دغو ادعاوو په باب د کابل د لوړو زده کړو وزارت ویاند عظیم نوربخش هم په دې اړه کوم ځانګړی ځواب ورنه کړ او ویې ویل، چې دا مهال په کندهار کې دی او د دغې پرېکړې په اړه پوره معلومات نه لري.

نوموړي یوازې دومره وویل" : که د شرعیاتو پوهنځي له خوا په علمي کادرونو کې د دغو علماوو د شامېلېدلو د حق نه لرلو په اړه مکتوب صادر شوی وي، کېدای شي؛ خو په قضا او څارنوالۍ کې د هغوی د جذبېدلو په اړه موږ کار نه لرو".

د دغې پرېکړې په اړه چې، د لوړو زده کړو وزارت د کوم مکتوب کاپي زموږ تر ګوتو را رسېدلې ده، د لوړو زده کړو وزارت د اکاډیمیکو چارو د انسجام ریاست له خوا، د دغه وزارت وزیر ته لیکل شوی دی او وزیر دا پرېکړه تأیید کړې ده.